


**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې
او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د
تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب
# د اسلامي ښوونې او روزنې
# د تدریس لارښود

## اتم ټولګی




د اسلامي ښوونې او روزنې د تدریس لارښود

اتم ټولګی





د چاپ کال: : ۱۳۹۰ هـ. ش.




**د پوهنې وزارت**
د تعليمي نصاب د پراختيا، د ښوونکو
د روزنې او د ساينس د مرکز معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
کتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونکي کتاب
# د اسلامي ښوونې او روزنې د تدريس لارښود
# اتم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۰هـ. ش.



**لیکوالان:**

- استاد نور الله صافی
- استاد فضل الله نیازی
- مولوی عبدالصبور عربی
- استاد رقیب الله ابراهیمی

**علمي او مسلکي ایډیټ:**

- مولوي قیام الدین کشاف
- استاد شاه ولي الله ادیب

**د ژبې ایډیټ:**

- محمد قاسم هیله من

**دیني، سیاسي او کلتوري کمیټه:**

- ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
- استاد محمد آصف کوچی
- حبیب الله راحل د پوهنې وزارت سلاکار د تعلیمي نصاب د پراختیا په ریاست کې.

**د څارنې کمیټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس د مرکز معین
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**ډیزاین:**

- عنایت الله غفاري





## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی　　دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې　　هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی　　د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو　　د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي　　پامېریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي　　هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي　　لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به　　لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مودی رهبر　　وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحيم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

## ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود داکتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودنو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او بریاوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درond مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود دکتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر



# سرليکونه

## سریزه

د ښوونکي لارښود هغه کتاب دی چې ښوونکو ته په ټولګیو کې د ښه او رغنده تـدريس لارښـوونه کـوي، هغـوی د ښوونې او روزنې له عمومي اهدافو، د تدريس له کړنلارې، ارزونې او درسي پروګرام سره  آشنا کوي.

دغه لارښود په دوو څپرکـو کـې تنظيم شـوې دی. لـومړی څپرکـی يـې د تـدريس د عمـومي اهـدافو، د تـدريس د کړنلارو او د تدريس د ارزونې تر عنوان لاندې دی چې ښاغلي ښوونکي د ښوونې او روزنې له موخو او د معلمی لـه رسالت سره اشنا کوي.

دوی زده کوي چې زموږ د ګران هيواد د ښوونې او روزنې مـوخې پـه مختلفـو اعتقـادی، اخلاقـي، علمـي، پـوهنيزو، کلتـوري، هنـري، مـدني، ټـولنيزو او اقتـصادي برخـو کـې کـومې دي. ددې موخـو د تحقـق لپـاره مختلـف درسـي موضوعګانې طرحي شوي دي.

په بيلابيلو ټولګيو کې ښوونکی بايد هڅه وکړي چې د تدريس پـه عملـي او نـوو لارو د دغـو موخـو د تحقـق زمينـه برابره کړي. ګران ښوونکي په دې توګه له درسي موضوعاتو، د هر لوست له عمومي اهدافو، د پروګرام لـه محتـوا، د تدريس او ارزونې له لارو چارو، د درسي سامان او لوازمو د استعمال او نورو پوهنيزو، ښـوونيزو او روزنيـزو کـړنلارو سره اشنا کيږي.

ددغه لارښود دويم څپرکی د سرو او تودو سيمو دتدريس کلني پلان، د هر لوست د تدريس چلند او د ورځنې پـلان منابعو او ماخذونو ته، چې د لارښود په تاليف کې له هغو نه ګټه اخيستله شـويده، ځـانګړی شـوی دی. د دې لارښـود ليکونکي پر دې باور دي چې ښوونکي کله د پوره وخت د نه لرلو له امله د ورځني پلان د جوړولـو وخـت نـه لـري. يا هر يو يې د درس له اهدافو څخه خاص استنباط لري. په نتيجه کـې د دوی د تـدريس څرنګـوالی يـو لـه بـل څخـه توپير مومي.

د ښوونکو په کارونو کې د آسانتياوو د رامنځ ته کولو په منظور درسي پلانونه داسې ليکل شوي دي چې په ډيـره ښـه توګه د تدريس په اړوند د دوی اړتياوې پوره کوي.

دغه توصيه شوې تدريسي کړنلاره د ښوونکو د هغو کړنلارو مخه نـه نيـسي چـې د کلونـو پـه اوږدو کـې يـې تجربـه کړيـدي او مثبتـې پـايلې يـې ورځينـې اخيـستې دي. يـو ډيـر ښـه تدريـسي ميتـود هغـه دی چـې د هغـه پـه کـارولو د زده‌کوونکو د زده کړې عمليه تر سره شي او ښوونکي د يوې دغسې عمليې په تطبيق سره د رضايت احساس وکړي.

د ورځنې پلان بله برخه د درس د متن پوښتنو، د لوست د پای پوښتنو تـه اختـصاص شـوې ده. د ښـوونکو د پـوهې د کچې د لوړولو لپاره په هر پلان کې اضافي معلومات راوړل شوي دي. بې له شکه دغه لارښود له ستونزو نه خـالي نـه دی. ګران ښوونکي د تعليمي نصاب مرکز ته د خپلو رغنده وړانـديزونو پـه را اسـتولو کـولای شـي ددې لارښـود پـه لاښه کيدو کې مرسته وکړي.

په پای کې ګران هيواد ته د صالحو، مؤمنو او د هيواد په وړاندې د مسوولو افرادو په روزنه کې ښـاغلو ښـوونکو تـه د لوی څښتن له دربار څخه د برياليتوبونو هيله کوو.

# لومړی څپرکی (فصل)

## د ښوونې او روزنې موخې او کړنلارې

**د ښوونکي رسالت او د ښوونې او روزنې ارزښت :**

پر نورو ژوو او مخلوقاتو د انسان غوره والی د هغه د علم او پوهې له مخې دی. قرآن کریم د علم د فضیلت په اړه فرمايي:(قل هل یستوي الذین یعلمون والذین لایعلمون انما یتذکر اولو الالباب) (الزمر:۹)

ژباړه: ووایه چې آیا د پوهې خاوندان او ناپوهان سره برابر دي؟ (یعنې : هیڅکله هم برابر نه دي ) د پوهې خاوندان دي چې نصیحت مني .

تعلیم : زده‌کوونکو ته د بشري تجربو او معلوماتو لیږدول تعلیم بلل کیږي.

تربیه: د همیشني تکرار او قانع کولو په وسیله په زده‌کوونکو کې د یو ځانګړې تګلارې او ذهنیت را پیدا کولو ته تربیه ویل کیږي.

د زده کړې ګټه هغه وخت څرګندیدای شي چې عملي بڼه ونیسي، له حقیقتونو سره موافق ذهنیت رامنځته او په یوې ګټورې پالیسی بدله شي.

انسان د خپل چاپیریال تر اغیزې لاندې راځي د ښې او بدې روزنې او زده کړې توان لري. په حدیث شریف کې راغلي دي چې هر مولود په خپل فطري حالت پیدا کیږي، مور او پلار او د هغه (چاپیریال)هغه یهودي، نصراني او مجوسي ګرځوي.

د تربیت ګټې او اهمیت الله تعالی په قرآن کریم کې په صراحت بیان کړي، الله تعالی فرمايي:(فذکر ان نفعت الذکری)(الاعلی:۹) ژباړه: بار بار یادونه کوه یقیناً چې هر وخت یادونه ګټوره وي.

متناسبه، ګټوره او هدفمنه ښوونه او روزنه د دیني، طبیعي او اجتماعي علومو په مختلفو مجالونو کې انساني استعداد ته وده او پراختیا ورکوي، ملت ته د دې توان وربښي چې یو موټی شي او په خپلو منځو کې د تراحم او تعاطف د فضا په رامنځته کولو ورپیښې سیاسي، اقتصادي او ټولنیزې ستونزې له منځه یوسي. په عزت او سر لوړۍ د خپلواکۍ تر بیرغ لاندې د نړۍ له نورو ملتونو سره ګډ ژوند وکړي. هر قوم او ملت چې ښوونې او روزنې ته د اهمیت په سترګه ونه ګوري کمزوري کیږي. له عیني واقعیتونو سره مغایر شعارونه نه یوازې دا چې انسان ته ګټه نه رسوي، بلکې د نورو په وړاندې یې د شرم او عار لامل جوړیږي.

څرنګه چې ښوونکی د ښوونې او روزنې د بهیر د سترې برخې پرمخ وړونکی دی، له دې امله خورا درونډ او مقدس رسالت لري، ځکه د مثبت بدلون یوازینی لاره ښوونه او روزنه ده. د الله پیغمبران چې د بشریت مخکښان یادیږي، یوازینی دنده یې د انسانانو روزنه وه.

له همدې امله د انسانیت ستر معلم حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د خپل رسالت مقصد ښوونه ښودلې ده او وايي: «انما بعثت معلماً» ژباړه: زه فقط ښوونکی را استول شوي یم.

څرنګه چې علوم بې شمیره ځانګې لري د اهمیت له مخې د هغو برخو زده کړه یې، چې د بشري ټولنې اړتیا ورباندې پوره کیږي، کفایي واجب ده. له دې امله د اسلام له نظره ټول هغه ښوونکي او زده‌کوونکي، چې د خپلې ټولنې د اړتیا د پوره او د مصالحو د جلبولو په نیت او مقصد د ښوونې او روزنې په چارو کې بوخت دي، ددین کار

کوي. ځکه په دې اړوند هر کار صواب دی او که اخلاص هم ور سره ملګری شي، نو د عمل صالح دواړه شرطونه، چې( صواب او اخلاص) دی، ترلاسه کوي او په دنیا او آخرت کې بریالی کیږي.

## په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې

په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې، د افغاني ټولنې د ارزښتونو، د علم او پوهې د هراړخیزې پراختیا په پام کې نیولو او د بشري ټولنې ورځنیو غوښتنو ته د ځواب ویلو په خاطر لاندې اساسي توکي دي:

### الف ـ عقیدوي او اخلاقي موخې

ـ د اسلام د مقدس دین پر بنسټونو د ایمان اوباور پیاوړې کول.

ـ د قرآن اوپیغمبر (ص) د سنتو په رڼا کې له هر ډول افراط او تفریط پرته، داسلامي لید پراختیا.

ـ د الله ﷻ پیژندنې په منظور د ځان پیژندنې د روحیې رامنځته کول.

ـ په نفس کې د اخلاقي ارزښتونو د پیاوړي کولو د روحیې پیدا کول.

ـ د نظم، دسپلین او قانوني ارزښتونو د رعایتولو د روحیې منځته راوړل.

ـ د ښوونیزو، روزنیزو او ټولنیزو ارزښتونو په هکله د مسوولیت د احساس د روحیې پیاوړي کول.

### ب ـ علمي او ښوونیزې موخې

زده‌کوونکي د تعلیمي نصاب او نورو فعالیتونو له لارې لاندې علمي او تعلیمي موخې ترلاسه کوي:

– د اورېدلو، خبرو کولو، لوستلو او لیکلو په څیر د زده کړې د وړتیاوو ترلاسه کول او ځواکمنول. په رسمي او بهرنۍ ژبو کې د شمیر او حسن خط زده کړه.

– د زده کړې د وړتیاوو تر لاسه کول، د زده کړې په بهیر او له هغې څخه د ترلاسه شوو نتیجو په پای کې د ځاني ارزونې په موخه د استعدادونو وده.

– په علمي او فرهنګي برخو کې د تفکر، مطالعې، څېړنې او نوښت پیاوړتیا.

– د پوهنو، فنونو، معاصرې تکنالوژۍ او د اړتیا وړ فردي او ټولنیزو مهارتونو لاس ته راوړل.

– د فردي او ټولنیزو ستونزو د هوارولو په موخه د وړتیاوو ترلاسه کول.

### ج – فرهنګي او هنري موخې:

ـ د فرهنګ او هنر (لاسي صنایع، ستنې ګنډنې، خامک ګنډنې، اوبدنې، انجینري، رسامي، خطاطي، انځورګري، د کور ښکلي کول او داسې نورو نړیوالو سالمو هنرونو او همدغه راز د پاکۍ او ښکلا پیژندنې ذوق او هنري استعدادونو پالنه او لارښوونه.

ـ د افغانستان او نړۍ له اسلامي او ملي تاریخي کلتور او تمدن څخه خبرتیا.

ـ د افغاني ټولنې د ارزښتونو ساتنه او د خورا غوره کلتور، آدابو او دودونو وده.

– د ټولنیزو او انفرادي فعالیتونو له لیارې دهنري وړتیاوو پراختیا

### د- مدني او ټولنیزې موخې

د لاندېنیو موخو تعقیبول د زده کونکو د موقف په وده کې د یوې کورنۍ، ځای، سیمې، ملي او بین المللي ټولنې د غړو په توګه مرسته کولای شي:

ـ د ديني او ملي نواميسو د ساتنې د روحيې پیاوړي کول، د حقوقو مراعاتول او د اسلامي لارښوونو او اخلاقو پر بنسټ د کورنيو د اړيکو ټينګول.
ـ د ورورګلوۍ، همکارۍ، سولې، ټولنيز عدالت، ملي او بين المللي پیوستون د روحيې پیاوړي کول.
ـ د خير رسونې او د لوړو اخلاقي فضايلو د روحيې پیاوړتيا، له نا روا جنګ ځخه کرکه او له نشه يي موادو سره مبارزه.
ـ د قانون په وړاندې د احترام د روحيې پیاوړتيا، د قوم، جنس، عمر، اقتصادي او ټولنيز موقف، سياسي تړاو او داسې نورو پرته د ټولو له قانوني حقوقو څخه ملاتړ.
ـ په ديني، فرهنګي، ټولنيزو او اقتصادي کړنو کې د ګډون د روحيې پراختيا.
ـ په سوله ييزه او جوړوونکې توګه د دښمنيو او لانجو د حلولو د روحيې رامنځته کول.
ـ د صبر او تفاهم د فرهنګ د روحيې رامنځته کول.
ـ د نړيوالې ټولنې له علمي او تخنيکي تجربو او لاس ته راوړنو څخه د ګټې اخيستنې د روحيې پیاوړي کول.
ـ انساني کرامت او بشري حقوقو ته د درناوي د روحيې پیاوړتيا.
ـ د ښځو انساني مقام ته د درناوۍ د روحيې وده او پراختيا او د هغوی له حقوقو څخه ملاتړ.
ـ د لويانو، ګاونډيانو او هيوادوالو د حقوقو او د مدني ټولنې د موازينو د رعايتولو د روحيې پیاوړتيا.

**هـ- اقتصادي موخې**

ـ د ټولنې د پراختيايي او اقتصادي اړتياوو او له کورني اقتصاد سره د هغو د اړيکو درک کول.
ـ د کار د اهميت او ارزښت معلومول او په ګټورو کسبونو کې د ګډون د روحيې پیاوړتيا.
ـ د سپما او قناعت د روحيې منځته راوړل، د تجمل پرستۍ او له اړتياوو پرته لګښتونو څخه ډډه کول.
ـ د هيواد د اقتصادي زيرمو او د هغو د راايستلو او ګټې اخيستلو د لازمو لارو چارو حل او پيژندنه او د ملي شتمنيو او طبيعي زيرمو د ساتنې د روحيې روزنه.

**و – روغتيايي موخې**

– د لاندېنيو موخو په مرسته به د رغنده چاپېريال په پراختيا او د ژوند د سمو لارو چارو په اړه د زده‌کوونکو د پوهې کچه پراخه شي:
– د ځاني پاک ساتنې (حفظ الصحې) او د فردي او ټولنيزې روغتيا په اړه د رغنده ژوند په لارو چارو پوهيدل.
– د عمومي حفظ الصحې او د چاپېريال د پاک ساتنې د روحيې پراختيا.
– له ناروغيو څخه د ساتلو په موخه له روغتيايي پوهې څخه برخمن کېدل او د اساسي مهارتونو پیاوړي کول.
– د لارو چارو او شرايطو په رامنځته کولو د بدني او رواني روغتيا تامينول او د سالمو تفريحګانو لپاره د بدني روزنې او ورزش او د خړوبه چاپېريال چمتو کول.
– د څمکنيومايننو، وسلې کارونې، د نشه يي توکو د استعمال او د هوا د ککړوالي له خطرونو څخه د مخنيوي لپاره د پوهې رامنځته کول او د وړتياوو کارول... .

## د منځنۍ دورې (۷ ـ ۹) ټولګیو عمومي موخې

هغه زده‌کوونکي چې لومړنۍ دوره په بریالیتوب سرته رسوي، د خپلې خوښې پر بنسټ په منځنۍ ښوونیزه او روزنیزه دوره کې شاملیږي. د دې دورې عمومي موخې د زده‌کوونکو د استعداد او خوښې او د هیواد لـه اړتیاوو او امکاناتو سره سم د ژوندانه د بیلابیلو لورو ټاکنه ده. ددې دورې موخې په لاندې توګه په پام کې نیول کیږي:

۱ـ د تیرو ښوونیزو او روزنیزو دورو د لاس ته راوړنو پیاوړتیا او د راتلونکې دورې لپاره چمتووالی.

۲ـ د معلوماتو، پراختیا او دیني، اخلاقي او بنسټیزو عقیدوي چاروته بشپړه پاملرنه او له اسلامي زده کړو سره په ښه توګه آشنایي.

۳ـ د الله (ج) د ښې پیژندګلوۍ په خاطر د ځان پیژندنې د روحیې پراختیا.

٤ـ په بیلابیلو درسي څانګو کې د زده‌کوونکو د استعدادونو په ګوته کول.

٥ـ د چاپیریال ساتنې، طبیعي قوانینو، علومو او انساني پرمختللو تجربو په هکله د زده کونکو د معلوماتو او څیرکتوب پراختیا چې په ساینسي مفاهیمو وسایلو او بنسټونو باندې ولاړوي.

٦ـ په هیواد کې د رسمي ژبو متوازنه وده، د مورنۍ او بهرنۍ ژبو پیاوړتیا او په تحریري او تقریري توګه، موخو ته د رسیدو لپاره د زده‌کوونکو د علمي سویې لوړول.

۷ـ د ورورګلوۍ، مرستې، سولې، ملي یووالي د پیاوړتیا، د ناروا جګړو، ظلم او قتل څخه د کرکې، د نشه یي توکو په مقابل کې د مبارزې او د تبعیض او تعصب پرځای سالمو او روا سیالیو ته د زده‌کوونکو د هڅونې د روحیې پراختیا.

۸ـ په زده‌کوونکو کې د خوښې او استعداد سره سم د روا کسب او مسلك د ټاکلو لپاره د پریکړې کولو د روحیې پیاوړتیا.

۹ـ د مسؤولیت منلو د روحیې پالنه او په دیني، کلتوري او ټولنیزو فعالیتونو کې د زده‌کوونکو د معلوماتو پراختیا.

۱۰ـ د بیلابیلو علمي چارو د برابرولو لپاره دزده‌کوونکو د کار او زیار د لیوالتیا پالنه.

۱۱ـ د زده کړې په پړاوونو کې د ځان ارزونې د مهارتونو پراختیا.

۱۲ـ له خپلې جسمانې روغتیا څخه ساتنه.

# په ښوونځي کې د درسي پروګرام معرفي

## په منځنۍ دوره کې د ديني علومو د زده کړې ارزښت

د پوهنې وزارت دنده لري چې د هيواد بچيان متدين، باخبره او متمدنه انسانان وروزي. له دې امله بايد زموږ ګران زده‌کوونکي د زده کړې په دوره کې د ديني علومو د مختلفو څانګو د زده کړې ترڅنګ د اجتماعي، رياضي او ساينسي علومو له نوې او مدرنې بڼې سره په ژوره توګه آشنا شي.

د ديني علومو زده کړه او مطالعه زده‌کوونکي له ديني، علمي، ادبي او سياسي وياړونو سره آشنا کوي، ديني هويت ورکوي او د اسلامي ارزښتونو په هکله د زده‌کوونکو ذهن ارزونې او پلټنې ته هڅوي او هغوی ته وړتيا ورکوي، ترڅو د دنيا او آخرت سعادت او نيکمرغي له ذلت او بدمرغۍ څخه توپير کړي.

په نني نړۍ کې چې يو شمير يې د نړيوال کلي په نوم يادوي هر انسان بايد نه يوازې د خپل هيواد له مذاهبو، معتقداتو او نظرياتو سره اشنايي ولري، بلکې د نړۍ د هيوادونو مذاهب، معتقدات اوديني اوسياسي ځانګړياوې هم وپيژني، تر څو وکولای شي د سولې په فضا کې د ګډ ژوند کولوپه اصولو وپوهيږي او د اسلامي اساساتو په رڼا کې خپل ژوند تيرکړي. هغه پوهه چې دغه ډول اړتياوې پوره کولای شي له ديني علومو څخه ترلاسه کيدای شي.

د ديني علومو زده کړه زده‌کوونکي د قرآن کريم، حديثو، فقهي، اخلاقو، د پيغمبرصلی الله عليه وسلم د سيرت او له هغو ديني او انساني ارزښتونو سره چې په اسلامي ښکلي نظام کې نغښتي دي، اشنا کوي.

انسانان فطرتا د قدرت درلودلو د غريزې لرونکي دي، د دې لپاره چې دا غريزه په دوی کې منظمه شي، بايد له اسلامي ارزښتونو او قوانينو څخه، چې په ټولو انساني ټولنو کې د منلو او تطبيق وړ ده، پيروي وکړي.

زموږ اولادونه بايد له منل شويو ټولنيزو اسلامي اصولو او ارزښتونو سره اشنايي پيداکړي ترڅو آزاد ژوند ولري او د عزت او انساني کرامت خاوند وي.

د ديني علومو زده کړه د انسان اړيکې له الله تعالی او د هغه له استازي حضرت محمد صلی االله عليه وسلم سره، چې د مسلمانانو د اتباع لپاره غوره نمونه ده، ټينګوي. دغه علوم عبارت دي، له : تفسير، حديث، فقه، عقايد، اخلاق، سيرت النبی صلی الله عليه وسلم او نورعلوم.

## دديني علومو د زده کړې موخې

دديني علومو زده کړه د اسلامي عقيدې د ټينګښت ترڅنګ موږ ته د شرعي احکامو او اخلاقو د پيژندنې او د وګړي، ټولنې او بشريت د ژوندانه د مصالحو لارښوونه کوي، ترڅو دهغې په رڼا کې زموږد وطن ځوانان دټولنې لپاره د سالمو او ګټوروغړو په څير وروزل شي او له مختلفو بيلابيلو قومونو اوقبيلو څخه يو قوي، عزتمن امت، چې افراد يې يو له بل سره ورونه او د اسلامي شريعت په چوکاټ کې د متساوي حقوقو لرونکي وي، را منځته شي. د خپلې ټولنې په مادي او معنوي جوړښت او د مسلمان ملت په پرمختګ او ترقی کې رغنده ونډه واخلي اوڅرګند رول ولوبوي.

## دديني علومو د زده کړوتګلارې

د تعليمی نصاب د ديني علومو د تدريس تګلارې د نورو څانګو په څير ډول ډول دي، خوديني علوم خپلې ځانګړې تګلارې لري چې د مضمون له محتوا سره سمون لري. دلته اړينه ده هغو تګلارو ته ځير شو چې د ديني علومو د مضمون د محتوا، د افغانستان د شرايطو، د زده‌کوونکو له علمي سويې او عمر(سن) سره سمون ولري. دغه

تګلارې پردې اصل ولاړې دي چې  زده کړه د زده‌کوونکو پـر شـاو خـوا څرخـي او ښـوونکی یـوازې د زده کـړې آسانوونکی وي. ښه زده کړه ډول ډول تګلاروته اړتیالري چې د مضمون له محتوا سره سمون ولري.

**مهمې تګلارې عبارت دي له :**

**۱-د مسألی حل او پلټنه**

د مسألي د حل تګلاره (ستراتیژي) داسې میتود دی چې لـومړی اساسـي پوښـتنې مطـرح کـیږي او زده‌کـوونکي بایـد ځوابونه ورکړې او د حل لارېې پیدا کړي. زده‌کوونکي باید دا کار د حقایقو او معلوماتو د پلټنې لـه لارې پـه لانـدې پړاوونو کې بشپړ کړي:

د مسألی ټاکل، د ذهنې حل دلارو بیانول یا د مسألي د حل طرحه، د وینـاوو را ټولـول او د وینـاوو د تحلیـل او نتیجه ګیرۍ د موضوع په هکله د نظریاتو ویل او دقت کول.

ښوونکی کولای شي له دي ستراتیژۍ څخه د ژوند د مسایلو (لکه دیني، سیاسـي، اقتـصادي، ټـولنیز او سـیمه ییـز) پـه برخه کې استفاده وکړي. او زده‌کوونکي په څو ډلو وویشی، چې د حل د ممکنو لارو په اړه خبرې وکړی. ښـوونکی باید له زده‌کوونکو سره مرسته وکړي او اړونده منابع د هغو په واک کې ورکړي. د ښوونې او روزنې چـارې سـمبالې کړي او هغوی وهڅوي چې له خپلو مهارتونو څخه د بحث او پلټنو په وسیله ګټه  واخلي.

**۲- د متن تحلیل**

له  دې ستراتیژۍ څخه د سیرت، تفسیر، حدیثو، عقایدو، فقهی او میراث  په مضمون کې ګټه اخیـستل کـیږي. پـه دې ستراتیژۍ کې له هغو متنونو ځخه چې له مراجعو څخه غوره  کیږي، استفاده کیږي. دا ستراتیژي لاندې پړاوونه لري:

- زده‌کوونکو ته د اصلي متن له ویشلو وروسته، ښووونکی هغه لولي.
- زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې متن ولولي او پر هغو پوښتنو باندي چې طرح کیږي فکر وکړي.
- ښوونکی او زده‌کوونکي په ډله ییز ډول د ځوابونو په اړوند خبري کوي.
- ښوونکی د اصلي متن او شرحو تر منځ اړیکې پیدا کوي.

**۳- د زده کړې فعالیت**

په دې ډول زده کړه کې ښوونکې د زده کړې لپاره ښه شرایط برابروي چې زده‌کـوونکي د زده کـړې فعالیتونـه پـه دقیق ډول سرته ورسوي. ښوونکی باید د زده‌کوونکو  د فعالیت په وخت کې لاندې موضوعات په نظر کې ونیسي:

د زده‌کوونکو تر منځ فردي توپیرونه، هدفمند مناسب فعالیتونه او په فکري عالي مهارتونو باندې تمرکز کول.

لاندیني مثال ته غور وکړئ :

حج، چې د اسلام پنځم رکن دی، څوفرضونه لري؟ د هغو اماکنو نومونه واخلئ چې دغه فرایض پکې ادا کیږي.

**۴ د مستقیم تدریس تګلاره:**

له دې طریقې څخه هغه وخت ګټه اخیستل کیږي چې ښوونکی غواړي یو مطلب د خبرو له لارې وړانـدې کـړي. پـه دی طریقه کې اساسی رول ښوونکی لوبوي.

دا طریقه د سیرت د موضوعاتو د تدریس لپاره( لکه د بدر غزا) مناسبه ده.

ښوونکی کولای شي، چې له دې طریقې څخه د مفهوم د تدریس او عمومیت ورکولو لپاره ګټه واخلي

**٦- د ډله ییز فعالیت تګلاره**

په دې طریقه کې زده‌کوونکي له څلورو څخه تر شپږو تنو پوري په څو ډلو ویشل کیږي. ددې طریقې فعاله زده کړه د ښه غوږ نیولو، بحث او خبرو د مهارتونو له لارې هڅول کیږي.

په دې کړنلاره کې د هرې ډلی زده‌کوونکي ګډو موخو ته د رسیدلو لپاره یو له بل سره کار کوي. ښوونکی کولای شي له زده‌کوونکو سره د مرستې په موخه له ځینو وسایلو څخه ګټه واخلي، په ډله ییزې کړنلارې کولای شو د ساده ځیرنو په سرته رسولو، د نقشې په رسمولو، د یوې نمایشنامې په اجراء کولو کې ګټه واخلو.

**٧- د رول لوبولو طریقه**

دا طریقه د فعالې زده کړې له مهمو طریقو څخه شمیرل کیږي. په دې طریقه کې له زده‌کوونکو څخه غوښتل کیږي هغه رولونه چې په واقعي ژوندانه کې وجود لري، ولوبوي. ښوونکي باید هر زده‌کوونکي ته یو رول ورکړي.

د مثال په ډول له زده‌کوونکي څخه غوښتل کیږي چې د نجش (بازارتیزی) د بیعې تمثیل وکړي.

له زده‌کوونکو څخه یو تن د بایع (پلورونکي ) نقش لوبوي، بل تن د مشتري (پیریدونکي) نقش لوبوي اوبل تن د ناجش (بازارتیز)په نقش کې رول لوبوي.

**٨- د تمرین میتود**

تمرین هغه فن دی چې له ډیر پخوا څخه په زده کړه کې استعمال شوی دی.

نن ورځ چې د روزنې (تربیتي) موخې د ذهنیتي او مهارتي پوهو په چوکات کې تنظیمیږي، د ښوونکو مسوولیتونه زده‌کوونکو ته د مناسبو تمرینونو په ورکړه کې هم زیاتیږي. تمرینونه ډیر ډولونه لري، لکه د تکرار کولو تمرین، د نتیجي دترلاسه کولو تمرین، څوځوابه، خانه خالي او معلوماتي پوښتنې اوعملي تمرینونه، له دې تمرینونو څخه د مهارتونو د لاس ته راوړلو لپاره دتاریخي او جغرافیایي نقشو په لوستولو، د اصحابو کرامو او دپیاوړو اونامتودینې اشخاصو د شجري په پیدا کولو کې ګټه اخیستل کیدای شي.

**٩- توضیحي طریقه**

توضیحي طریقه زده‌کوونکو ته د چاپي مطالبو نه په استفادې سره په نیغه د اطلاعاتو انتقالول،، د لوست تشریح کول او نورو رسنیو څخه ګټه اخیستنه ده.

په دې طریقه کې ښوونکی مفاهیم او درسي موضوعات زده‌کوونکو ته وړاندې کوي. د توضیحي طریقې له ښه والي څخه یو هم دا دی چې کولای شو د حقایقو پوره مجموعه، اصول او مفاهیم به منظمه توګه زده‌کوونکو ته وړاندې کړو. د دې طریقې نیمګړتیا داده چې زده‌کوونکي تیار مطلبونه ترلاسه کوي او د حقایقو په کشفولو کې فعال نه وي. دا طریقه له نورو طریقو سره یو ځای استعمال شي، ګټوره به وي. له توضیحي طریقې څخه کولای شو د زیاتو علمي مفاهیمو په زده کړه کې ګټه واخلو.

**١٠- د ډله ییزې مباحثې طریقه**

د مباحثې میتود یو له ډیرو پخوانیو میتودونو څخه دی، چې د ښوونې او روزنې د تاریخ په اوږدو کې ورڅخه ګټه اخیستل شوې ده. د ډله ییز بحث په پیل کې ښوونکی زده‌کوونکي په ډلو ویشي او هرې ډلې ته د بحث ځانګړې موضوع ټاکي. له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د هغې په هکله بحث وکړي. د بحث په پای کې د ډلې له غړو څخه یو تن د بحث پایلې نورو زده‌کوونکو ته بیانوي.

ډله ییز بحث داسې طریقه ده چې غړو ته یې فرصت ورکوي چې خپل نظریات، عقیدې او تجربې له نورو سره شریکې کړي،که چیرې ښوونکی د ډله ییز بحث څارنه ونه کړي، کیدای شي د ډله ییز بحث وخت په بې ګټو



خبرو تیرشي. په دې طریقې کولای شو د ټولنیزو موضوعاتو په زده کړه، د تاریخ د قهرمانانو د کړنو په هکله او یا په مشهورو راویانو پورې اړوندو مسایلو کې ګټه واخلو.

**د کار د واحد (پروژه یي) طریقه:**

د کار د واحد په طریقه کې د اطلاعتو راټولول، د حل دلارو لټول، مطالعه کول او دکار ترسره کول اړین بلل کیږي. دغه طریقه معمولاً له ښوونځي څخه بهر ترسره کیږي. په دې طریقه کې ښوونکی زده‌کوونکو ته یوه موضوع ټاکي او له هغوی څخه غواړي چې د هغې په اړه معلومات راټول کړي او یا د کوم فعالیت په ترسره کولو کې ونډه واخلي. لکه د فقهی د (رمي الجمرات) د تدریس په موضوع کې له زده‌کوونکو څخه غواړي چې واړه ګاټي (کاڼي) راټول کړي یا د دوربین په مرسته د منظرو انځورونه برابرکړي او یا هم د لرغونو آثارو، د غزواتو د نقشو او د دیني او ټولنیزو موضوعګانو په اړه څیړنې وکړي.

## ۱۱- علمي سیر

د علمي سیر طریقه له ښوونځي څخه بهر یو تجربوي فعالیت دی او له ټولګي څخه بهر سرته رسیږي. لکه د اسلامي اماکنو، مکې مکرمې، مدینې منورې، بیت المقدس او یا کتابتون لیدنه او په هغوکې ګرځیدل.

## ۱۲- د پوښتنو او ځوابونو طریقه

د پوښتنو او ځوابونو طریقه هغه فن دی چې کولای شو د ټولو لوستونو په تدریس کې ورڅخه ګټه واخلو. په ځانګړي ډول هغه وخت چې ښوونکی وغواړي، د زده‌کوونکو پام د یوه نوي مفهوم په هکله فکر کولو ته را واړوي له دي طریقې څخه ګټه اخلي. دا فن ممکن په یوه لوست باندې د تکرار لپاره چې پخوا تدریس شوی وي او یا د زده‌کوونکو د پوهې د ارزوني لپاره وکارول شي.

ښوونکی کولای شي څو ډوله پوښتنې طرحه کړي، چې کولای شو هغه په لاندې ډول را لنډې کړو:

۱- لنډې پوښتنې

مثال: پرحضرت محمد صلی الله علیه و سلم باندې د لومړي ځل لپاره وحی چیرته نازله شوه؟

۲: مقایسوي پوښتنې

مثال: د مسلمانانو حالت په مدینې منورې کې د مکې مکرمې له حالت څخه څه توپیر درلود؟

۳: علت او معلول

مثال: د احد په غزا کې د مسلمانانو د زیات مرګ ژوبلې علت څه شی و؟

٤: توضیحي پوښتنې

مثال: زکاة تعریف کړئ او د زکاة مستحقین څوک دي؟

٥: د لنډیز لپاره پوښتنې

مثال: د حدیث شریف دویم لوست، چې د خرڅولو او اخیستلو په هکله دی، ولولئ او لنډیز یې ووایاست؟

٦: د مثال لپاره پوښتنه

مثال: حج درې ډوله دی، دیو ډول نوم یې واخلئ.

۷- د تجزیې او تحلیل لپاره پوښتنه

مثال: د بدر غزا پر مشرکانو څه اغیزه وکړه؟

۸- د طبقه بندۍ لپاره پوښتنې
مثال: د ځای پاکوالی د لمانځه له کومو فرایضو څخه دی؟
۹- د نتیجه ګیرۍ پوښتنی
مثال : که په خپل چاپیریال کې د نیالګیو له کینولو غفلت وکړو، څه به پیښ شي؟

## د زده‌کوونکو د پوهې د ارزونې تګلاره

ارزونه د زده کړې موخوته د رسیدلو د اندازې د معلومولو وسیله ده. ارزونه ښوونکي ته د زده کړې د طریقو او فعالیتونو له بریالیتوب څخه یو روښانه تصویر وړیه برخه کوي. د دیني علومو د مضامینو د ارزونې لپاره نورو مضمونونو ته له ورته طریقو څخه کار اخلي.

څرنګه چې ارزونه د روزنې له مهمو کړنلارو څخه ګڼل کیږي، د یوه درس د زده کړې لپاره آړینه ده چې له جمود (تلقین او د معلوماتو د یادونې) څخه بهر شي او په ژوندۍ زده کړه( په بحث، تحلیل، تفسیر او د مسایلو په حل) واوړي.

د ارزونې ځینې مهمې ستراتیژي ګانې په لاندې ډول دي:

**د قلم او کاغذ(لیکلو) له طریقې څخه استفاده**

په دې طریقه کې له قلم او کاغذ څخه کار اخیستل کیږي او له مهمو ستراتیژیګانو څخه ده چې په ځانګړو کارونو کې د زده‌کوونکو ځواک اندازه کوي. په دې طریقه کې چې کومې پوښتنې زده‌کوونکو ته ورکول کیږي هغوی ورته په لیکلې بڼه ځواب ورکوي. له دې طریقې څخه معمولاً په څلورنیم میاشتنیو او کلنیو ازموینو کې ګټه اخیستل کیږي چې په ټاکلې دوره کې د زده‌کوونکو د زده کړې اندازه وارزول شي. دیادونې وړ ده چې دا ډول ازموینه یوازې د پیژندنې او پوهې په برخو پورې تړلې پاتې کیږي.

**د کتنې (مشاهده کولو) طریقه**

په دې طریقه کې ښوونکی یا کتونکی خپل ټول حواس زده‌کوونکوته وراړوي او هغوی په یوه ټاکلې ځای کې تر څارنې لاندې نیسې. د دې څارنې موخه دا ده چې د زده‌کوونکو په هکله معلومات تر لاسه کړل شي او د هغوی د مهارتونو، سلوکو او اخلاقو د ارزونې لپاره تر ګټه واخلي. د کتنې په وخت کې له ډول ډول وسایلو څخه هم ګټه اخیستل کیږي، د مثال په توګه ارزونه، کله عددي او کله غیر عددي وي له هغې څخه وروسته چې ښوونکي دا اطلاعات راټول کړي باید هغه د کمیت له مخې تحلیل کړي چې د زده‌کوونکو کمزورې او قوي نقطې پیدا شي. د مشاهدې په میتودکې باید له څو ډوله چک لستونو څخه ګټه واخیستل شي.

چک لستونه مختلف ډولونه لري. د مثال په توګه د مسایلو په حل کې د زده‌کوونکو د مهارتونو د اندازه کولو چک لست، د زده‌کوونکو د ذهنیت د اندازه کولو چک لست، په لوست پورې د اړوندو مهارتونو د اندازه کولو چک لست.

ښوونکی کولای شي په خپله د زده‌کوونکو د سلوک او عمل د کتنې د چک لست په برابرولو اقدام وکړي.

پام وکړئ هغه نمونه چک لست ته، چې د مسایلو په حل کې د زده‌کوونکو د مهارت د اندازه نیولو لپاره په کارول کیږي.

**پر کړنې باندې ولاړ چک لست**

| شمیره | معیار | ضعیف(۱) | منځنی(۲) | ښه(۳) | لوړ(٤) |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | چلند | | | | |
| ۲ | د مسألې ځانګړې کول او ارزونه یې | | | | |
| ۳ | وړاندې کول | | | | |
| ٤ | د توکو ډلبندي او ارزونه یې | | | | |
| ٥ | لیکل | | | | |

په دې چلند کې زده‌کوونکي باید هغه څه روښانه کړي چې په واقعي ژوند کې یې زده کړي دي او یا هغه فعالیت ترسره کړي چې خپل مهارتونه پکې څرګند کړي. په دې چلند کې هغه معیارونه لکه: د زده‌کوونکي توضیحات، د رول سرته رسول، په ډله کې ګډ کار، د فردي کار سرته رسول او نورې کړنې د پام وړ ګرځي.

**د دیني علومو په لوستونو کې د زده‌کوونکو د کړنو د اندازه اخیستنې د چک لست نمونه**

| شمیره | معیارونه | منځنی | ښه | لوړ(عالي) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | له دوستانو سره په فصیحه او صحیحه ژبه اړیکې نیسي. | | | |
| ۲ | د دیني علومو د مضامینوله مصطلحاتو، مفاهیمو او محتوا څخه کار اخلي | | | |
| ۳ | د ټولو زده‌کوونکو لورته ګوري. | | | |
| ٤ | له یوه ځواکمن او پیاوړي شخصیت څخه برخمن دی. | | | |
| ٥ | د زده‌کوونکو پوښتنو ته په جرات او ډاډ ځواب وایي. | | | |
| ٦ | مفاهیم او اصطلاحات تعریفوي. | | | |
| ٧ | د محتوا مهم عناصر ټاکي. | | | |
| ٨ | دلوست اړوند د دیني علوموله کتابونوڅخه کار اخلي. | | | |
| ٩ | د یوه صحیح چلند په منظور له زده کړه ورکوونکو توکو څخه کار اخلي. | | | |
| ۱۰ | خپل مطلب په یوه ټاکلي وخت کې ترسره کوي | | | |

**د اړیکو لرونکو مهارتونو د ارزونې چک لست**

دغه چلند له نورو سره د اړیکو د مهارتونو د تر لاسه کولو د اندازه نیولو په منظور په کار وړل کیږي، د دیني مضامینو نصاب د ارتباطي مهارتونو په ودې باندې ولاړ دی. په دې ستراتژۍ کې معلومات د زده‌کوونکي د ارتباطي کړنو، د مسایلو په حل کې د هغه د تفکر او د چلند د څرنګوالي له منځه راټولیږي. لاندې مثال ته پاملرنه وکړئ.

**د ارتباطي مهارتونو د اندازې اخستنې چک لست نمونه**

| شمیره | د اړیکو مهارتونه | هو | نه | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ابتکاري افکار نورو ته وړاندې کوي. | | | |
| ۲ | کله چې مطلب ورته څرګند شي د نورو نظر منې او له خپل نظر نه تیریږي. | | | |
| ۳ | د نورو نظریو ته درناوی کوي. | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ٤ | په هغه کار کې چې ورته سپارل شوی دی، د مسولیت احساس کوي. | | | | |
| ۵ | له نورو سره ګډ کار کوي. | | | | |

**پاملرنه:** د زده کوونکو یوه برخه صنفي نمرې په ټولګي کې د زده کوونکو د کړنو پر بنسټ د ښوونکي د کتنې له مخې په ټولګې کې ځانګړې کیږي او پاتې نورې یې د ادارې په تصمیم او د پوهنې وزارت په ارزونې پورې تړاو لري.

## د دیني علومو د تدریس د اجرایي پروګرام لوازم

**۱- د اړتیا وړ پوهنیز مرستندویه توکي**

تخته، تباشیر، مارکر، د ښوونکي لارښود کتاب، په دیني علومو پورې اړوند کتابونه، د امکان په صورت کې کامپیوتر او انترنت، د سیرت النبي د تاریخي پیښو په اړه فلمونو او انځورونه.

**۲- د دیني علومو له ښوونکو نه هیلې**

**الف- عمومي صلاحیتونه**

په شرعي علومو کې د لیسانس د درجې لرل او یا لږ تر لږه له بکلوریا نه پورته زده کړې لرل، له مضمون سره آشنایي، د زده کوونکو له سني او ذهني ځانګړتیاوو سره آشنایي، د تدریس له چلندونو سره آشنایي، د زده کوونکو له پوهې څخه د ارزونې د څرنګوالي او د تدریس له چلند سره آشنایي.

د ښوونکي له دندې سره مینه او د اخلاقي صلاحیت لرل.

**ب: ځانګړي صلاحیتونه**

- د دیني علومو له درسي مفرداتو سره آشنایي او د بیلابیلو درسونو د تدریس چلندونه.
- د بیلابیلو لوستونو دیادولو لپاره د پلان د جوړولو ځواکمني.
- د ټولګیو د اداره کولو ځواکمني.
- له درسي او ممد درسي وسایلو څخه د کار اخیستنې ځواکمني

**۳- له ښوونځي نه هیلې**

- د پروګرامونو د سرته رسولو لپاره د شرایطو رامنځته کول. د مطالعې کتابونو تیارول، د ښوونکي لارښود او د زده کړې توکي برابرول.
- د زده کوونکو له مشرانو سره د منظمو اړیکو رامنځته کول.
- د زماني پروګرامونو د اجرا کولو په اړوند د پوهنې وزارت مصوباتو ته پاملرنه.
- په ټولګي کې د ښوونکو پرکړنو څار او د ښوونکو لارښوونه.
- په ښوونځیو کې د کتابتون جوړول.

د کورنیو په ګډې مرستې د ښوونکو د اړتیا وړ کتابونو تیارول.

**۴- له کورنیو څخه هیله**

- د کوچنیو زده کوونکو د ښوونیز څرانګوالي په اړه د هغوی له ښوونکو سره اړیکه نیول.
- د زده کوونکو له لوستیز پرمختګ څخه خبر لرل.
- د ښوونځیو له ادارې سره مرسته.

# دویم څپرکی

## د تدریس لارښود

ددې لارښود په لومړي څپرکي کې تاسې ښاغلي ښوونکي د درسي پروګرام له مقدماتو او کلیاتو، د تدریس له لارو چارو او د دې پروګرام د ارزونې له څرنګوالی سره آشنا شوئ.
په دې څپرکي کې به د تدریس له کلني پلان او د هر لوست د تدریسولو له چلند او میتود سره اشنا شئ.

**د تدریس کلنی پلان:**

دغه پلان دا ښوونه کوي چې تاسو څرنګه په یوه کال کې د یوه درسي کتاب منځپانګه (محتوا) په ورځو، اوونیو، او میاشتو وویشئ. زموږ په هیواد کې د ښوونیز (تعلیمی) کال پیل په تودو او سړو ولایتونو کې توپیر لري. په ګرمسیرو ولایتونو کې ښوونیز (تعلیمی) کال د مني له لومړي سر څخه پیلیږي او د مرغومي(جدي) دوه اوونۍ ازموینې ته بیلې شوي دي. په وروستنۍ اوونۍ کې هم زده‌کوونکي په رخصتۍ ځي. د پسرلي په پای کې یعنې د غبرګولي( جوزا) میاشتې دوه لومړنۍ اوونۍ ازموینې ته بیلې شوي دي.
زده‌کوونکي په دوو وروستیو اوونیو کې د کال د پای په رخصتۍ ځي.
د سړو سیمو په ولایتونو کې تعلیمی کال د کب (حوت) له( ۱۵ ) ورځې څخه پیلیږي. د نیمايي تعلیمی کال په پای کې د چنګاښ(سرطان) میاشتې په دوو وروستیو اوونیو کې ازموینې پیلیږي. زده‌کوونکي د زمري(اسد) میاشتې په دوو اوونیو کې له ازموینې نه وروسته په رخصتۍ ځي. په دې سیمو کې د تعلیمی کال د پای ازموینې د لیندۍ (قوس) میاشتې په دوو اوونیو کې پیل او تر ازموینې وروسته زده‌کوونکي په رخصتۍ ځي، د پوهنیز کال اوږدوالی په ټول کا ل کې ۲۸ اوونۍ دی. د کلني پلان د تنظیم او جوړولو لپاره د درسي کتاب د پاڼو شمیر په ۲۸ شمیرو ویشل کیږي.
تر لاسه شوې شمیرې دا ښودلای شي چې ښاغلی ښوونکی په اوونۍ کې باید د کتاب څو پاڼې تدریس کړي.

## د سړو سیمو ځانګړی درسي کلنی پلان

| فصل | میاشتې | لومړۍ اونۍ | دویمه اونۍ | دریمه اونۍ | څلورمه اونۍ |
|---|---|---|---|---|---|
| ژمی | کب | رخصتي | رخصتي | | |
| | وری | | | | |
| | غویي | | | | |
| پسرلی | غبرګولی | | | | |
| اوړی | چنګاښ | | | آزموینه | آزموینه |
| | زمري | لس ورځې د دوبي رخصتي | | | |
| | وږی | | | | |
| | تله | | | | |
| | لړم | | | | |
| منی | لیندۍ | آزموینه | آزموینه | رخصتي | رخصتي |

## د تودو سیمو ځانګړی درسي کلنی پلان

| فصل | میاشتې | لومړۍ اونۍ | دویمه اونۍ | دریمه اونۍ | څلورمه اونۍ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوړی | وږی | رخصتي | رخصتي | | |
| | تله | | | | |
| منی | لړم | | | | |
| | لیندۍ | | | | |
| | مرغومي | | | آزموینه | آزموینه |
| ژمی | سلواغه | ۱۰ ورځې د ژمي رخصتي | | | |
| | کب | | | | |
| | وری | | | | |
| پسرلی | غویي | | | | |
| | غبرګولی | آزموینه | آزموینه | رخصتي | رخصتي |

## د ښوونکي صفتونه

۱ــ ښوونکی باید د دیانت، تقوٰی او نېکو اخلاقو خاوند وي.
۲ــ ښوونکی باید خالص نیت ولري.
۳ــ ښوونکی باید خاکساري او تواضع ولري.
٤ــ ښوونکی باید ښه خوی ولري.
٥ــ ښوونکی باید عزت النفس ولري.
٦ــ ښوونکی باید د لوړعزم او ارادې خاوند وي.
۷ــ ښوونکی باید په خپل ځان باوري وي.
۸ــ ښوونکی باید علمي صلاحیتونه ولري.
۹ــ ښوونکی باید د آرامۍ او صمیمیت فضا رامنځ ته کړي.
۱۰ــ ښوونکی باید پر زده‌کوونکو مهربانه وي.
۱۱ــ ښوونکی باید هڅوونکی وي او هغه زده‌کوونکو ته وروليږدوي.
۱۲ــ ښوونکی باید پر زده‌کوونکو زړه سوی ولري.
۱۳ــ ښوونکی باید د زده‌کوونکو له ستونزو څخه باخبره وي.
۱٤ــ ښوونکی باید د زده‌کوونکو له ځانګړتیاوو څخه خبرتیا ولري.
۱٥ــ ښوونکی باید د زده‌کوونکو د پوهولو لپاره پلټنې وکړي.
۱٦ــ ښوونکی باید د زده‌کوونکو د آندونو او نظرونو احترام وساتي.
۱۷ــ ښوونکی باید دیني او ملي مسؤولیتونه رعایت کړي.
۱۸ــ ښوونکی باید د زده‌کوونکو نظریات او رای واوري.
۱۹ــ ښوونکی باید له زده‌کوونکو سره نیکې اړیکې ولري.
۲۰ــ ښوونکی باید ټولنیز سوچ ولري.
۲۱ــ ښوونکی باید د ژور فکر خاوند وي.
۲۲ــ ښوونکی باید پاکي او نظافت مراعات کړي.
۲۳ــ ښوونکی باید د ښکلي سیرت او صورت خاوند وي.
۲٤ــ ښوونکی باید د زده‌کوونکو فردي توپیرونو ته پاملرنه ولري.
۲٥ــ ښوونکی چې په کومو مسئلو چې نه پوهیږي باید په هغه اعتراف وکړي.
۲٦ــ د ښوونکي د پیل او پای باید پر دعا وي.
۲۷ــ ښوونکی باید زده‌کوونکو ته ناصح وي.
۲۸ــ ښوونکی باید په ټولګي کې عدالت رعایت کړي.
۲۹ــ ښوونکی باید د سپېڅلي ضمیر خاوند وي.
۳۰ــ ښوونکی باید پر خپل درسي مضمون حاکمیت ولري.
۳۱ــ ښوونکی باید د زده‌کوونکو لپاره په ټولو کړو او وړو کې غوره بېلګه وي.
۳۲ــ ښوونکی باید د ښه فصاحت او بلاغت خاوند وي.
۳۳ــ ښوونکی باید زده‌کوونکي لوست ته راجذب کړي.

## لومړی لوست

عنوان: د ونو کېنولو او کښت کرلو ارزښت

وخت: یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

موخې:زده کوونکې باید:

۱ــ د حدیث شریف راوي، معنا او ګټې وپېژني.

۲ــ د ونو کېنولو او د کښت د کرلو ارزښت وپېژني.

۳ــ په خپل ژوند کې د ونو کېنول او د کښت کرلو ارزښت پلي کړای شي.

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱ــد رواي په هکله معلومات:**

د دې حدیث راوي انس بن مالکﷺ دی.

د حضرت انسﷺ مور ام سلیم بنت ملحان نومیده چې د ام حرام خور وه او ام حرام د پیغمبرﷺ رضاعی ترور وه.

اللهﷻ ورته د پیغمبرﷺ د دعا له برکته زیات مال، اولاد او ډېر عمر ورکړی و .انسﷺ فرمایي: اللهﷻ ماته دومره زیات اولاد راکړي و چې زما په مخکې زما له اولادې څخه سل تنه دفن شوي دي او اللهﷻ زه د ډیرعمر خاوند کړم .

مؤرخینو لیکلي چې یوازې په طاعون عمواس کې د انسﷺ اتیا اولادونه شهیدان شوی دي.

انسﷺ د امویانو او عباسیانو د خلافتونو تر وخته پوری ژوندی و. د ده په اولاد او نسل کې ډېر کسان قاضیان او وزیران تیر شوي دي .

حضرت انسﷺ فرمایي: کله چې ما د پیغمبرﷺ خدمت کاوه نو اته کلن وم او چې کله پیغمبرﷺ وفات کیده نو زه اتلس کلن وم.

د حضرت انسﷺ څخه روایت دی چې :( ما لس کاله د پیغمبرﷺ خدمت کړی چې هغه مبارک راته د اف په اندازه بده خبره هم نه ده کړې او نه یې راته دا ویلي چې دا کار دې ولې نه دی کړی او یا دې ولې کړی) متفق علیه.

په صحابه وو کې آخري کس چې وفات شوی دی هغه حضرت انس بن مالک او بیا ابو الطفیل عامر بن واثلة اللیسی دي.

ځیني مؤرخین وایي: چې په کوفه کې وفات شوی خوځینې نورداسې وایي چې په بصره کې وفات شوی دی.

د انسﷺ د وفات د نیټې په هکله درې ډوله روایات رانقل شوي دي یو دا چې په ۹۲ هجري، بل په ۹۳ هجري او په بل روایت کې ۹۹ هجري کې وفات شویدی . (الباعث الحثیث دامام ابن کثیرلیکنه).

**۲ــد ونو کینولو او کښت کرلو ارزښت:**

په شریعت کې د ځمکې آبادولو او د ښکلا په باب ډېر نصوص راغلي دي او د ونو، بوټو د کینولو او د کښت د کرهنې په هکله هم ځانګړي فضایل بیان شوي دي. په یو حدیث شریف کې راځي، که چیرې قیامت راشي او ستاسې په لاس کې د ونې ځانګه وي، باید هغه کینوئ.) مسند احمد.

ونې کینول جاریه صدقه ده . که چیرې انسانان مړ شي، انسانان یا ځاروي له کینول شوې ونې څخه ګټه اخلي، پس له مرګه به ورته ثواب رسیږي. په بل حدیث شریف کی راځي چې (هرڅوک چې پرته له ظلمه کومه ابادي وکړي او یا کومه ونه کینوي، نو هغه ته به یې ګټه تر هغې رسیږي، چې تر څو ورڅخه د اللهﷻ مخلوقات ګټه اخلي . ) مسند احمد.

علماء کرام پوښتنه کوي چې کوم یو کسب بهتر دی؟ ځیني علماء غوره کسب تجارت بولي، یو شمیر یې د لاس صنعت بولي او ځیني نور بهتره کار زراعت بولي . امام نووي (رح) همدا نظر غوره ګڼلی.

له دې امله شریعت مسلمانان دې کار ته ډیر هڅولي دي ترڅو کار وکړي، دا کار دنیوي او اخروي ګټې لري.

**۳_د کښت او کرهنې ګټې:**

د کرهنې او کښت فردي او اجتماعي ګټې ډېرې زیاتې دي لکه له کرل شوي بوټي له دانې څخه ګټه اخیستل او اجتماعي او اقتصادي پیاوړتیا . که چیرې د ټولنې افراد کرنې ته شا کړي نو ټولنیزه اقتصادي پیاوړتیا له خنډ سره مخامخ کیږي .

کر او کیله او د ونو کینول هوا له ککړتیا څخه ساتي او دګرمۍ سطحه راټیټوي، د سیلابونو او نورو طبیعي آفاتو مخنیوی کوي چې دا هرڅه د فرد او د ټولنې د هوساینې لپاره اړین دي .

ونه خواړه هم سیوري دي، هم درمل دي، هم ښایست او ښکلا ده، په ځینو روایاتو کې راغلي هر پیغمبر یو کار او کسب کاوه چې حضرت آدمؑ د زراعت او کرکیلې او د ځمکې د آبادی په موخه دانه کښتونه کرل .

په حدیث شریف کې راغلي دي: (تاسو رزق په ځمکه کې ولټوئ . )

کرکیله هغه پاک رزق دی، چې که څوک نور حرام ونه خوري، نو د ده دعا به اللهﷻ قبلوي داسې شخص ته مستجاب الدعوات ویل کیږي.

**۴_د کلماتو معنا:**

۱_ متفق علیه حدیث: هغه حدیث ته ویل کېږي چې امام بخاري اوامام مسلم په خپلو صحیحینو کې راوړی وي.

۲_ غرساً :دغرس یغرس غرساً له باب څخه دی چې په ځمکه کې د ونو بوټو کینولو ته وایي.

زرعاً :له زرع، یزرع، زرعاً باب څخه دی چې په ځمکه کې د دانو کرلو او کښت کولو ته ویل کیږي.

۳_الطیر: الطیر هر هغه ژوي ته ویل کیږي چې په هوا کې الوزي . برابره خبره ده چې د مرغانو له جملې څخه وي او که د حشراتو، لکه بلبلکې، ملخان او نورې الوتونکې خزندې، خو په عربي استعمال کې د (الطیر) غلبه په وحشي الوتونکو مرغانو باندې شوې ده.

۴_بهیمة: هغه څاروې چې خبرې نشي کولای او په آواز کې یې ابهام پروت وي خو په عربی استعمال کې ورڅخه د څیروونکو ژوو څخه پرته عام څاروې مراد دی.

۵_ کاربندای اکساید: ګاز ته ورته یو مرکب دی چې د سوزېدونکو موادو له بشپړه سوزیدلو څخه لاس ته راځي.

٦– اکسیجن: یوه حیاتي ماده ده چې د هغې له تنفس کولو پرته ژوند ممکن نه دی.

٧– تمدنونه: د تمدن جمع ده . تمدن د ژوند په هره ساحه کې پرمختګ ته وایي .

۸_ ژوو: حیوانات

۹_ سمسور: زرغون

۱۰_توکي: مواد

**۵_ د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**٦_د زده کړې مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، د احادیثوکتابونه، تخته، تباشیر او تخته پاک.

**دلوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | دزده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:**<br>ښوونکی وروسته له سلام او احوال پوښتنې څخه ځان زده‌کوونکو ته معرفي کوي، ټولګی منظموي، له حاضرۍ اخيستلوڅخه وروسته زده‌کوونکو ته د اووم ټولګي د بري او نوي درسي کال مبارکي وايي.<br>د احاديثود اهميت په باره کې د معلوماتو په ورانـدې کولوسره زده‌کوونکي درس ته هڅوي.<br>همداراز د نوي لوست عنوان پر تخته ليکي او لوست پيلوي. | ــ زده کوونکي دښوونکي دسلام ځواب په ډله ييزه توګه ورکوي،دښوونکي لارښوونې عملي کوي،اودهغه خبروته غوږنيسي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ــښوونکی لومړی د حديث الفاظ په خپله او بيا دتکړه زده‌کوونکي په وسيله په لوړ آوازسره لولي .<br>– ښوونکی زده‌کوونکي په درس کې شريکوي او د لوست لاندې مهم مطالب زده‌کوونکو ته په خورا ساده عبـارتونو او زړه راښکوونکو طريقو سره وړاندې کوي .<br>۱ــ ښوونکی زده‌کوونکو ته د حديث راوي ورپېژني.<br>۲ــ زده‌کوونکو ته دحديث شريف معنٰى بيانوي.<br>۳ــ زده‌کوونکو ته د حديث شريف حکمتونه په ګوته کوي.<br>۴ــ د حديث شريف ګټې ته د زده‌کوونکو پام اړوي، ترڅو يې په خپل ژوند کې عملي کړي.<br>ــپه لوست کې ورکړای شوي فعاليتونه په خپل ځای کې مطرح کوي.<br>ــ همدا راز ښوونکی له حديث څخه راويستل شوې ګټې تشريح کوي اوپه شريکه سره د نورو ګټو د راويستلو هڅه اوکوښښ کوي تر څو زده‌کوونکي پر دې قانع کړي چې اسلام د ژوند په هـره برخـه کـې ګټورې لارښوونې لري.<br>په پای کې لوست د مهمو ټکو پـه راټولولـو خلاصـه کـوي او د زده‌کوونکوسوالونوته ځوابونه وايي، دهغوی تېروتنې په خورا شـفقت او مهربانۍ اصلاح کوي. د لوست پر موخو د زده‌کوونکو پر پوهېدلو ځان ډاډمنوي . | ــ زده‌کوونکي دې لوست ته ځيرشي اوخپلو کتابونوته دې وګوري.<br>زده کوونکي د لوست ستونزې له ځانونو سره يادداشت کوي.<br>ــ زده‌کوونکي دې دلوست تشريح ته غوږونيسي.<br>ــ زده‌کوونکي دې له حديث څخه دنوروګټوپه لاسته راوړلو کې خپل نظريات څرګند کړي. |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>۱. کښت اود ونوکينول د چاپېريال په ساتنه او د هوا پـه پـاکولو او معتدل ساتلوکې مهم رول لوبوي .<br>۲. کښت اود ونوکينول د ژوو ژوند تضمينوي.<br>۳. کښت او د ونوکينول غرونو، دښتو او ځمکې ته ښکلا ورپه برخه کوي. | – زده‌کوونکي بايد دلوست لنډيزتـه غوږونيسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ۴. د ونو په کښینولو اسلام له ډیر پخوا تأکید کړی دی.<br>۵. کرنه د ژوند د تامین او له لوږې او بې کارۍ سره د مبارزې تر ټولو ښه او مهمه لار او د تمدن غوره بیلګه ده.<br>۶. مسلمانان باید داسې کارونه وکړي چې خیر یې یوازې بندګانو ته نه بلکې ټولو ساکښو ته ورسیږي او له دې لارې د ثواب مستحق وګرځي.<br>۷. د غذايي توکو برابرول ثواب لري.<br>۸. د ونو کینول تلپاتې صدقه ده. | |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي ډول ارزوي .<br>۱. د حدیث شریف راوي معرفی کړئ .<br>۲. د حدیث شریف لنډه معنا بیان کړئ .<br>۳. د حدیث شریف ګټې ذکر کړئ. | ـزده کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې وکړي . | ـ زده کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**دویم لوست**:

**عنوان:** په پلورلو کې رښتیا ویل

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې**:زده‌کوونکي باید:

۱ــ د حدیث شریف راوي وپېژني،او دحدیث شریف پر معنا، ګټو او حکمت پوه شي.

۲ــ د رښتیا ویلو ارزښت ته متوجه،اود درواغو له زیانونو څخه خبرشي .

۳ــ رښتیا ویل په ځېلوځانونو عملي،او خپل عادت ورګرځوي .

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱ــد حدیث د راوي پېژندنه:**

عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د هغو أصحابو له ډلې څخه څخه دی چې زیات احادیث یې له پیغمبر ﷺ څخه روایت کړیدي، د بعثت پــه دریم کال زیږیدلی و ډېر فقیه صحابي ؤ، د پیغمبر ﷺ له وفات څخه وروسته به نورو اصحابو د مسایلو د حل لپاره عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ته مراجعه کوله ، عبدالله ابن عمر رضي الله عنه هغه صحابي ؤ چې د پیغمبر ﷺ د ټولو کړو وړو پوره متابعت یې کاوه .

په وړکتوب کې یې له پلار سره یوځای ایمان راوړ، د لسو کالو ؤ چې مدینې منورې ته یې هجرت وکړ. د بدر غزا پر مها ل د پیغمبر ﷺ حضورته په غزا کې د ونډې اخیستلو په غرض راغی پیغمبر ﷺ ورته د عمر د کموالي له امله په غزا کې د ګــډون اجازه ور نکړه . د اُحد په غزا کې هم همداسې وشو، خو د خندق په غزوه کې یې برخه واخیسته په دغه وخــت کــې د ده عمر پنځلس کاله ؤ، او د مکې د فتحې پروخت شل کلن و دولس زامن او څلور لونې یې درلودي .

عبدالله بن عمر رضي الله عنه منځنی ونه درلوده، غنم رنګی او تر اوږو پورې جمه(ویښتان) یې درلوده، د ښه صحت اوقوي جسم څښتن و ډېر عابد او زاهد انسان و. له فتنو او شخړو څخه بیزاره و د أ صحابو ترمنځ په شخړو کې به یې همیش د ناصح او دریم ګړي کردار ادا کاوه .

**دحدیث شریف اړونده شرحه:**

**۲ــصدق او رښتیا ویل :**

مسلمان باید ریښتونی او صادق واوسي . لازمه ده چې د ویناوو او کړنو ترمنځ یې توپیر نه وي . څه چې په ژبه وایي په عمل کې هم هغه پلی کړي . په ژوند او کړنه کې له درواغو څخه جداً ځان وساتي ځکه رښتیا ویل د ایمان او درواغ ویل د نفاق علامه ده پیغمبر ﷺ فرمایي : ((د منافق درې علامې دي : کله چې خبرې کوی نو درواغ وایي،کله چې وعده وکړي خلاف ورزي یې کوي او کله چې هغه ته امانت وسپارل شي په هغه کې خیانت کوي) .

رښتیا ویل د الله جل جلاله د پیغمبرانو او د نیکو او غوره خلکو خصلت او صفت دی . الله جل جلاله له رښتیا ویونکوسره د ګناهونو د مغفرت او د لوی اجر وعده کړې ده . صدق او رښتیا ویل انسان د نیکیو لورې ته هڅوي او د خیر او رزق دروازې ورته پراخوي په ځانګړې توګه په اخیستلو او خرڅولو کې، لکه چې پیغمبر ﷺ فرمایي (فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِكَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا، وَإِنْ كَتَمَا وَكَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا .) البخاری.

ژباړه: که چیرې اخیستونکي او خرڅوونکي په خپله معامله کې رښتیا وویل : نو په پېر او پلور کې یې خدای برکت اچوي او که یو بل ته یې درواغ وویل او حقیقت یې پټ کړ، نو له راکړې او ورکړې څخه به یې برکت محوه او پورته کړای شي).

رښتیا ویل د دین اساس او د انساني ټولنې د بقا او هوسایني لامل دی، له رښتیا ویلو پرته د نړۍ نظام جوړښت او دوام نه مومي.

په معاملاتو کې دوکه، درواغ ویل د وګړو ترمنځ شخړې، کرکې او نفرتونه را پیدا کوي، رښتیا ویل نه یوازې په ژبه، بلکې په عمل نیت اراده او وعده کې مطلوب دی . د رښتیا ضد درواغ دي چې په ټولنه کې بې اعتمادي، بی ثباتي، او مادي او معنوي ارزښتونه له منځه وړي او ټولنه د بد مرغۍ لوري ته بیایې .

**۳_هر ډول دوکه ناوړه کار دی :**

د ژوند په هر ډګر کې درواغ ویل او خلکو ته دوکه ورکول ناوړه او مردود عمل دی . که هغه د فرد او یا د ټولنې په کچه وي او یاټولنې ته وي، که په اخیستلو کی وي، یا په خرڅولوکې، یاپه کومه بله معامله کې او یا هم چاته ناسم معلومات ورکول وي.

دوکه ورکول که د کیفیت په اعتبار وي اوکه د کمیت، دواړه حرام کار دی . لکه د مبیعې عیب پټول په وزن کې کمي، په قسم سره د مبیعې خرڅول، د اخیستونکي په وړاندې د خپلې تقوا لاپې وهل، د مبیعې زیات صفت کول، مشتري ته داسې وعدې ورکول چې د پوره کولو وس یې نه لري.

**۴ــ زموږ امتي نه دی:**

د حدیث په وروستنۍ برخه کې راغلي دي، څوک چې زموږ امتیانو ته دوکه ورکوي نو زموږ له اتباعو او زموږ له ډلې څخه نه دی .

د حدیث شریف له دې فقرې څخه دوه مطلبونه څرګندیږي : یو دا چې زموږ د ډلې څخه نه دی، یعنی مسلمان نه دی .
بل دا چې زموږ په لاره برابرنه دی چې دلته ورڅخه وروستنۍ معنا مراد ده.

په یوبل روایت کې راځي : پیغمبرﷺ د داسې یو چا ترڅنګ تیریده چې خوراکي توکي یې خرڅول . پیغمبرﷺ ورته وویل څرنګه یې پلورې؟ الله ﷻ خپل پیغمبر ته د دغه توکو د کیفیت په هکله وحي وکړه، چې لاس په توکو کې دننه کړه کله چې پیغمبرﷺ مبارک لاس په خوراکي توکو کې دننه کړ، ګوري چې دننه توکي یې لامده دي . نو بیایې وفرمایل: هغه څوک زموږ له ډلې څخه نه دی چې مونږ ته دوکه راکوي.) صحیح مسلم

**۵_د کلماتو معنا:**

۱_ احتکار:د قیمت د لوړیدو په غرض خوراکي توکي ساتل.

۲_نرخ: دجنسونو قیمت

۳_درمند: د غلې ډېری.

۴_ نقلي والی: جعلي والی او د خراب کیفیت مال.

۵_ شفاف: پاک اوسوچه.

**د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**د زده کړې مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، د حدیثو متون او شرحې، تخته، تباشیر.



**دلوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | دزده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵<br>دقیقې | **مقدمه:**<br>ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو وروسته سلام اچوي او د زده‌کوونکو د احوا ل پوښتنه کوي،ټولګی تنظیموي او د حاضرۍ اخیستلو وروسته د تیرلوست په اړه له زده‌کوونکوڅخه پوښتنې کوي :<br>• د لومړي لوست حدیث له کومې موضوع سره تړاو درلود؟<br>• د لومړي حدیث ګټې څوک بیانولی شي؟<br>د صحیح ځواب په اورېدلو د نوي لوست عنوان پر تخته لیکي . | _زده‌کوونکي دې په ډله ییزه توګه د سلام ځواب ورکړي.<br>ـ زده‌کوونکي دې دښوونکي په لارښوونه عمل وکړي.<br>ـ زده‌کوونکي دې سوالونو ته ځوابونه ورکړي. |
| ۲۵<br>دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>_محترم ښوونکی د حدیث شریف متن په تکره زده‌کوونکي لولي او تېروتنې یې اصلاح کوي.<br>_ د حدیث شریف معنا په بل زده‌کوونکي لولي . په دریم زده‌کوونکي د حدیث حکمت لولي او په بل زده‌کوونکي دحدیث ګټې لولي.<br>_ ښوونکی د حدیث شریف د هرې ګټې په برخه کې له بېلا بېلو زده‌کوونکو سره مباحثه کوي.<br>ـ ښوونکی د لوست لاندې عمده مطالب زده‌کوونکو ته په داسې ساده او اسانې طریقې سره وړاندې کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه مناسبه ګټه واخلي.<br>۱_ د حدیث شریف د راوي پېژندنه.<br>۲_ د لوست د حدیث د معنا، حکمت او ګټو بیانول.<br>_ ښوونکی زده‌کوونکي په دې قانع کوي چې د حدیث شریف ګټې په خپل ژوند کې عملي کړي، د زده‌کوونکو په ګډون د حدیث شریف د نورو ګټو د راویستلو هڅه کوي او په پای کې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصه کوي.<br>د لوست پر موخو دې د زده‌کوونکو پر پوهېدلو ځان ډاډه کوي. | _ زده‌کوونکي دې د ښوونکي غوښتنې عملي کړي.<br>ـ نور زده‌کوونکي دې لوست ته وګوري او ضروري مطلبونه دې له ځانونو سره ولیکي.<br>ـ زده کوونکي دې د لوست مطالبو ته پوره توجه وکړي اوځانونه دې د لوست په بهیر کې شریک کړي.<br>ـ زده‌کوونکي باید د ښوونکي شرحې اوتوضیحاتوته ځېرشي.<br>ـ زده‌کوونکي له حدیث څخه د نوروګټو د لاسته راوړلو په غرض له ښوونکي سره مرسته کوي. |
| ۵<br>دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>۱. پر هرمسلمان لازم دي چې د ژوندانه په هره برخه کې رښتیني واوسي اوله هرډول دوکې څخه ځان وژغوري.<br>۲. حاکمانو او د واک خاوندانو ته په کارده چې د نرخونو او د جنسونود کیفیتونو څارنه وکړي.<br>۳. په اسلام کې د معاملو سپېڅلتیا ډېره اړینه خبره ده.<br>۴. په ویناوو اوکړو وړو کې فریب او دوکه خورا بد عمل دی. | |

| | | |
|---|---|---|
| | **۵. یواځې اسلامي اقتصاد پر شفافیت او ریښتینولۍ ولاړ اقتصاد دی.** | |
| | **ارزونه:**<br>**ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي ډول ارزوي .**<br>**۱. د عبدالله ابن عمر (رض) ژوند په لنډ ډول بیان کړئ.**<br>**۲. فریبکاري په ټولنه کې کومې بدې پایلې را منځته کوي؟ واضحه یې کړئ.**<br>**۳. د حدیث شریف له ګټو څخه درې ګټې ولیکئ.**<br>**۴. لاندې کلمې معنا کړئ.**<br>أ. **حَسَّنَهُ**<br>ب. فَأَدْخَلَ يَدَهُ<br>ج. فَمَنْ غَشَّنَا | **- زده‌کوونکي دې په فردي او ګروپي ډول دښوونکي سوالونوته په ادب سره ځوابونه ورکړي.** |
| | **کورنۍ دنده:**<br>**ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې وکړي.** | **- زده‌کوونکي باید د ښوونکي د لارښوونو سره سم کورنۍ دنده په ښه دقت سره ترسره کړي،او د حدیث وروستنۍ برخه دې حفظ کړي.** |

## دریم لوست:

**عنوان: د ګاونډي حقونه**

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي باید:

۱ – حدیث شریف په صحیح توګه او پرته له کومې نیمګړتیا ولوستلای شي.

۲ – د حدیث معنا،حکمت او ګټې وپیژني.

۳ – له ګاونډي سره د نیک تعامل اهمیت وپیژني.

۴ – د ګاونډیانو حقوق وپیژني .

۵ – له ګاونډیانو سره د نیکۍ کولو ذهنیت ترلاسه کړي.

**ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱ــ د راوي په هکله معلومات:**

د راوي په هکله معلومات په لومړي لوست کې تیر شوې دي.

**۲ــ د حدیث شریف پورې اړوند معلومات:**

په حدیث شریف کې راځي: ((د قیامت په ورځ به ډېر داسې ګاونډیان وي چې په خپلو نورو ګاونډیانو پورې به نښتي وي او وایي به ای اللهﷻ دا زما هغه ګاونډی دی چې زما پرمخ یې د نیکیو دروازه تړلې وه))

په بل حدیث کې راځي: ((کامل مؤمن نه دی چې خپله ځان موړ کړي او په څنګ کې ګاونډی یې وږی وي)). ابوامامــهﷺ فرمایي: (( ما له پیغمبرﷺ څخه په داسې حال کې اوریدلي چې په حجة الوداع کې پر خپله اوښه سپور ؤ او ویل یــې: ((ای خلکو، تاسې ته زه د ګاونډي په هکله وصیت کوم )).

ابوذرﷺ فرمایي: چې ما ته پیغمبرﷺ وفرمایل: ای ابوذره کله چې څه پخوئ، نو اوبه په کې زیاتې کړه او د خپلو ګاونــډیانو خیال وساته)) .

همدارنګه په بل حدیث کې راځي: ((مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ)). مسند أحمد

ژباړه: څوک چې په الله او د اخرت پر ورځې ایمان لري، نو خپل ګاونډي ته دې ضرر نه رسوي.

**۳ــ د ګاونډي پېژندل:**

کله چې د ګاونډي لفظ ذکر شي، نو د انسان ذهن ته ډېر ژر د هغه دکور او کلي ګاونډیان راځي حا ل دا چې د ټــولګي ملګري، د لارې ملګري، د سفر ملګري، د کاروبار ملګري، د دفتر ملګري دا ټول د ګاونډي په مفهوم کــې شــامل دي . دوی هم هغه حقوق لري چې د کور او کلي ګاونډیان یې لري.

دکور کلي د ګاونډي په باره کې مختلف اقوال راغلي دي: حضرت عليﷺ وايې، څوک چې ســتا آواز اوري، هغــه ســتا ګاونډی دی . ځینې خلک وایي څوک چې درسره د سهار لمونځ په جومات کې کوي، هغه ته ګاونــډي ویــل کېــږي. ام المؤمنین حضرت خدیجه رضي الله عنها وایي، د ګاونډیتوب حد څلوېښت کورونه دي. د مخ لور ته کورونه، د شا لور تــه کورونه، ښي اړخ ته کورونه او کیڼ اړخ ته کورونه. او اوس مهال د ستا څخه د لاندې او پاس منزل کورونه.

ګاونډیان د حقوقو له حیثه په درې ډوله دي :

۱ــ هغه ګاونډیان چې درې حقونه لري.

۲ــ هغه ګاونډیان چې دوه حقونه لري.

**۳ـ هغه ګاونډیان چې یو حق لري.**

– هغه ګاونډی چې درې حقونه لري له هغه ګاونډي څخه عبارت دی چې هم ګاونډی، هم مسلمان او هم خپلوان وي.

– هغه ګاونډی چې دوه حقونه لري، هغه ګاونډی دی چې هم ګاونډی او هم مسلمان وي .

– هغه ګاونډی چې یو حق لري، له هغه ګاونډي څخه عبارت دی، چې کافر وي. دغه ګاونډی یوازې د ګاونډیتوب حق لري.

**۴ـ د ګاونډیانو حقوق:**

د ګاونډیانو حقوق په درېو ټکو کې خلاصه کیږي:

۱– له ګاونډیانو سره هر ډول نیکي کول، لکه ډالۍ ورکول، پر هغه سلام اچول، له هغه سره په ورین تندې مخامخ کېدل، د هغه د حال احوال پوښتنه کول او د اړتیا پر وخت له هغه سره مرسته کول.

۲– ګاونډیانو ته له هر ډول ضرر رسولو څخه ځان ژغورل، لکه ګاونډي ته د پوچو او ناوړو الفاظو استعمالول، د ګاونډي د کور په مخه کې د اوبو تویول، ښېښې اچول، خاورې او خزلې اچول او د هغه د کور دننه لور ته کتل او له داسې نورو کړنو څخه ځان ساتل.

۳– د ګاونډي پر بدیو او تېر وتنو سترګې پټول :

هغه څوک چې د ناپوهه او جاهل په مقابل کې له حلم او زغم څخه کار اخلي او له هغه چا سره نیکي کوي، چې ورڅخه بدې ویني، ډېر لوی نیک عمل دی، که څوک له ګاونډیانو سره ښه چلن وکړي، نو د الله ﷻ په وړاندې یې درجه نوره هم پورته کیږي.

**۴ـ د کلماتو معنا:**

۱–**جبریل علیه السلام**: دالله ﷻ هغه مقربه ملایکه ده چې پیغمبرانو ته وحې راوړي.

۲ـ **یوصیني**: وصیت اونصیحت به یې کاوه ماته.

۲ـ **حتی**: تر دې پورې.

۳ـ **سیورثه**: زر دې چې ګاونډي به له ګاونډي څخه میراث یوسي .په بل روایت کې راځي زه په دی عقیده وم تر هغه چې د میراث آیت نازل شو، د میراث په آیت کی ټول وارثان وو، خو ګاونډی په کی نه وه بیا ډاډمن شوم چې ګاونډی وارث نه دی، خو د ډېر زیات حق څښتن دی .

**۵ـ د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**٦ـ د زده کړې مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، د احادیثو د متونو او شروحو کتابونه، نقشه، تخته، تباشیر.

**دلوست بهیر :**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | دزده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښوونکي وروسته له سلام اچولو، د زده‌کوونکو د حال، احوال پوښتلو، د حاضری له اخیستلو او کورنۍ دندې له کتلو څخه له زده‌کوونکو څخه د تېر لوست په باره کې پوښتنه کوي:<br>● تیر حدیث څوک په یادو ویلای شي.؟ | ـزده‌کوونکي دې په ډله ییز ډول د سلام ځواب ووایي.<br>ـ زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دندې ښوونکي ته سپاري.<br>ـ زده‌کوونکي دې په وار سره د ښوونکي سوالونوته ځوابونه ورکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| | • دحدیث ژباړه څوک کولای شي؟<br>د ځواب د اورېدلو څخه وروسته د نوي لوست عنوان، او د حدیث متن پر تخته لیکي او لوست پیل کوي. | |
| ۲۵ دقیقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>– محترم ښوونکی لومړی دنمونې په توګه د حدیث شریف متن ،دکلماتو معنا اودحدیث ژباړه لولي،او بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې د حدیث شریف حکمت،اودحدیث ګټې په اوچت آواز سره ولولي.<br>– ښوونکی د لوست لاندې مهم مطالب زده کوونکو ته په ساده او اسانو عبارتونو وړاندې کوي، ترڅو زده کوونکي ورڅخه لازمه ګټه واخلي او د لوست موخو ته ورسېږي.<br>۱_ د راوي پیژندل.<br>۲_ د حدیث شریف د ژباړې، حکمت او ګټو تشریح .<br>– محترم ښوونکی په لوست کې ورکړل شوی فعالیت په ګروپي شکل مطرح کوي.<br>_ محترم ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي . | _ زده کوونکي دې دښوونکي لوست ته ښه ځیر شي.<br>ــ زده کوونکي دې لوست په لوړ غږ سره ولولي.<br>ـــ زده کوونکي دې د ښوونکي تشریح اومعلوماتو ته غوږ کیږدي.<br>ــ زده کوونکي دې د سوال ځواب په ډله ییزه توګه ورکړي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>۱. ګاونډي ته د وارث مرتبه ورکول .<br>۲. دګاونډي پیژندل .<br>۳. د اسلام په مبارک دین کې د ګاونډي پر حقونو زیات ټینګار<br>۴. له جبریل علیه السلام سره د پیغمبر(ص) دکلکو او همیشه اړیکو ساتنه.<br>۵. ګاونډي ته له هر ډول تکلیف رسولو څخه ځان ساتل او د ګاونډي حقونو پرځای کول . | ــ زده کوونکي دې دلوست لنډیز ته غوږ کیږدي. |
| | **ارزونه:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په ګروپي، او فردي ډول ارزوي او د درسي کتاب څخه پوښتنې مطرح کوي . | _ زده کوونکي دې د ښوونکي د غوښتنې سره سم د هغه سوالونو ته ځوا بونه ورکړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې وکړي. | _ زده کوونکي دې د لوست حدیث شریف له معنا سره حفظ کړي او هم دې په یوه منتخبه موضوع کې مقاله ولیکي. |

**څلورم لوست**:

**عنوان:** ګاونډي ته د تکلیف رسولو ګناه.

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې**:زده کوونکي باید:

۱– د حدیث معنا او له حدیث راوي وپېژني.

۲– د حدیث د حکمت او ګټو سره اشنایي پیدا کړي.

۳– ګاونډي ته د زیان رسولو په اړه د ګناه د کچې په لویوالي وپوهېږي .

۴– د داسې انګیزې او احساس لرونکي وي چې له بدیو څخه ځان وژغوري.

**ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱– د راوي پېژندنه:**

په جاهلیت کې یې نوم عبدالشمس و چې بیا رسول اللهﷺ په عبدالرحمن ونوماوه . د پلار نوم یې صخر و . د دَوس له قبیلې څخه و،او په ابوهریرهؓ یې شهرت درلود.

د هجرت په اووم کال د حدیبې له سولې څخه وروسته او د خیبر د غزا څخه مخکې د اسلام په مبارک دین مشرف شو په همدې غزوه کې یې برخه واخیسته .کله چې مدینې منورې ته ورسید، نو په نبوي مسجد کې یې د علم د زده کړې په غرض په هغه مقام کې ځای ونیوه، چې د ده په څېر نور صحابه هم هلته میشت وو په نیمه ګېډه یې د پیغمبرﷺ څخه د علــم د زده کړې په خاطر شپې او ورځې تیرولې چې په اصحاب صفه وو باندې یادیدل او شمېر یې شاوخوا اویاوو ۷۰ تنو ته رسیده.

دا چې څرنګه یې په ابو هریرة رضي الله عنه باندې شهرت وموند، پخپله داسې وایي : له اسلام څخه دمخه چې کله ما ګډې پولې، ما یوه وړه پیشو ساتلې وه . کله به چې صحرا تللم هغه به مې له ځانه سره واخیسته او کله به چې کورته راتلم هغه به مې په یوه ونه کې کینوله . له دې امله خلکو په ابوهریره، یعنی د( پیشو په څښتن )باندې مشهور کړم.

**۲ــ د حدیث شریف اړونده شرحه:**

په مخکې لوست کې مو ولوستل چې انسان ټولنیز مخلوق دی . د ګاونډي خوشحالول او ورسره نېکې او ښې اړیکې لرل د انسان پر ژوند باندې مثبتې اغېزې لري ګاونډي ته زیان رسول او له ځان څخه یې خپه کول د انسان په ژوند بانــدې منفــي اغېزه کوي . اسلامي شریعت ګاونډي ته زیان رسول د کامل ایمان د نشتوالي علامه ښودلې او پیغمبرعليه السلام د همدغه مطلــب د تائید لپاره، چې ګاونډي ته زیان رسول لویه او عظیمه ګناه ده، درې ځلې یو په بل پسې قسم یاد کړی دی، چــې د دغــه خوی لرونکی مؤمن نه دی،له دې امله لازمه ده چې ګاونډي ته له زیان رسولو څخه ځان وساتو.

په یوروایت کې راځي د پیغمبرﷺ په وړاندې د یوې ښځې داسې صفت بیان شو چې هغه ښځه ټوله شــپه د الله جل جلاله عبــادت کوي، د ورځې روژه وي او صدقات او خیراتونه ورکوي، خو یو عیب لري، چې ګاونډیانو ته په ژبه زیان رسوي. پیغمبــرﷺ وفرمایل: ((هیڅ خیر په کې نشته او دغه ښځه جهنمي ده)).

له دې نصوصو څخه په ډاګه څرګندیږي چې اسلام د ګاونډي په اړه څومره ټینګار کړی او هغه ته یې زیان رسول لویه ګنــاه بللې ده . برابره خبره ده که دغه ضرر او تکلیف په ژبه وي، په کړنه او په معاملاتو کې یا په چال چلن کې . نو ویلای شــو چې نیک ګاونډي د الله جل جلاله ستر نعمت او بد ګاونډی یو امتحان او آزمېښت دی، خو که څوک پرې اخته شي نو له صــبر او زغم څخه دې کار واخلي.

**۳ــ په غیر الله باندې قسم خوړل:**

پر غیر الله باندې قسم کول ناروا کار دی. په حدیث کې راغلي چې څوک قسم کوي، نو په الله دې قسم وکړي او یـــا دې چوپ واوسي.

ــ شرعي قسم چې نتیجه او ثمره وروباندې مرتبېږي هغه قسم دی چې د اللهﷻ په نوم او یا صفاتو باندې وي.

ــ قسم د تاکید لپاره کېږي او باید له ټولو څخه په معظم شي باندې وي او تر ټولو معظم الله تعالی او د هغه صفات دي.

ــ په دروغو قسم کول روا نه دي، ځکه چې د الله تعالی د تعظیم سپکاوی کېږي.

ــ له ډېر قسم کولوڅخه باید ډډه وشی، ځکه چې الله تعالی فرمایلي دي : ((واحفظوا أیمَانَکُم)) یعنې د خپلو قسمونو خیـــال وساتئ.

ــ پیغمبرﷺ د ګاونډي د کور خلکو ته په بد نظر کتل د شرک او عاق په څېر لویه ګناه ګڼلې ده.

**۴ــ د کلماتو معنا:**

۱ – الجار: جار په عربي لغت کې د شریک، پناه ورکوونکي، ملګري او ګاونډي په معنا راغلی دی.

۲ــبوایق: د بائقة جمع ده، چې ضرر، هلاکوونکي، شرونو، او خطرونو ته ویل کیږي.

۳ــ نص: ظاهر او ښکاره ته وایي او د فقهاؤو په اصطلاح کې هغه عبارت ته ویل کېږي چې بې له احتماله پر یو شي دلالت کوي او د قرآن، سنت او اجماع پر دلایلو یې هم اطلاق کېږي.

**۵ــ د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**۶ــ د زده کړې مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، درسي ممد کتابونه، د حدیثو متون او شروح، تخته، تباشیر.

## دلوست بهیر :

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی د سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو او دکورنۍ دندې لـــه کتلو وروسته له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي : څـــوک د مخکینـــي لوست لنډیز ویلی شي؟<br>د سم ځواب له اورېدلو څخه وروسته د نوي لوست عنوان، دحـــدیث متن او د لوست عناصر پر تخته لیکي او د یوې پوښتنې په کولـــو ســـره زده‌کوونکي نوي لوست ته هڅوي . | ــزده‌کوونکي دې په ګروپـــي ډول د سلام ځواب ووایي.<br>ــ زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دنـــدې ښوونکي ته سپاري.<br>ــ زده‌کوونکي دې په نوبـــت ســـره دښوونکي سوالونوته ځوابونه و رکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>ــ محترم ښوونکی لومړۍ له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه خوله هر یو له ځانه سره ولولي .<br>ــ بیا ښوونکی پر یوه ذهین زده‌کوونکي د حدیث شـــریف مـــتن او د حدیث ژباړه لولي .په بل زده‌کوونکي د حدیث شریف حکمت اوګټـــې لولي.<br>ــ محترم ښوونکی د حدیث موضوع تشریح کوي، د لوست هره ګټـــه زده‌کوونکو ته روښانه کوي او زده‌کوونکي دې تـــه هڅـــوي ترڅـــو د | ــزده‌کوونکي دې لوست په غور سره په پټه ولولي اوستونزې دې له ځانـــه سره یادداشت کړي.<br>ــ زده کوونکي دې دلوست شـــرحي اوتوضیح ته غوږکیږدي.<br>ــ زده‌کوونکي دې د لوست فعالیـــت په حلولوکې فعاله ونډه واخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | لوست محتویات په خپل ژوند کې عملي کړي .<br>ـد لوست فعالیت په ګروپي شکل سرته رسوي .<br>ـپه پای کې دې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصه او زده‌کوونکو ته بیان کړي . | |
| | **د لوست لنډیز:**<br>۱. ګاونډي ته ضرر رسول خورا لویه ګناه او ناروا کار دی، ځکه په دې هکله په شریعت کې سخت وعید راغلی دی.<br>۲. نورو ته د دې ګناه د لوی والي بیانول. | ـ زده کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ کیږدي . |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکي په شفاهي ډول وارزوي او د لوست پر پوهېدلو دې ځان ډاډ من کړي.<br>۱- د ګاونډیو ځینې حقونه بیان کړئ.<br>۲- لاندې کلمې معنا کړئ.<br>أ- لَا يُؤْمِنُ:<br>ب-الْجَارُ:<br>ج- بَوَائِقَهُ: | ـ زده‌کوونکي دې په خورا ادب سره سوالونو ته شفاهی ځوابونه ورکړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې وکړي. | - زده‌کوونکي دې (ګاونډي ته د زیان رسولو) په باره کې پنځه کرښې مقاله ولیکي. |

**پنځم لوست**:

**عنوان:** کینه لویه ګناه ده

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي باید:

۱– حدیث په صحیح توګه ولوستلای شي.

۲– د حسد او غبطې ترمنځ توپیر وکړای شي.

۳– د کینې دیني او دنیوي زیانونه وپیژني.

۴– خپل ځانونه له دغه ناوړه عمل څخه وژغوري.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱– د راوي پیژندنه:**

په څلورم لوست کې وپیژندل شو.

**۲_د حدیث د موضوع په اړه توضیحات:**

دا یو ثابت حقیقت دی چې انسان د نېکو خویونو ترڅنګ ځینې بد خویونه هم لري . د بدو خویونو په سرکې یــوهم حــسد دی، ځکه چې د انسان په وجود کې د نېکیو رڼا ختموي، له دې امله پیغمبرعلیه السلام کله له اور سره تشبیه کړی او کله یې هــم له چړې سره او کله یې هم د ایمان ضد معرفي کړی او وایي : د مؤمن په زړه کې ایمان او حسد نه جمع کېــږي . لــه دې امله مسلمان باید ځان له حسد څخه وژغوري . زړونه هم لکه د جسم په څیر په ناروغیو اخته کیږي چې د هغې لــه جملــې څخه کینه او حسد دي.کینه او حسد لکه د وژونکو زهرو په څیر هلاکوونکي ناروغي ده چې ډېر لږ وګړي ورڅخه خــلاص دي. یوازې په احادیثو کې له حسد څخه منعه نه ده راغلې، بلکې په قرآن کریم کې هم له حسد څخه منعه شــوې ده، لکــه چې الله تعالی فرمایي: ((أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَى مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ [النساء : ۵۴]

ژباړه:آیا دوی له خلکوسره له دې امله حسد کوي چې الله جل جلاله پرهغوی دخپل فضل پیرزوینه کړې ده.

حسد کبیره ګناه ده، ځکه حسد کول د الله تعالی پر بندګانو باندې د نعمتونو پر وېشلو باندې اعتراض کــول دي . داســې ویل شوي دي چې حسد لومړنی ګناه ده چې په آسمانونو او ځمکه کې ورباندې د الله تعالی نافرماني شوې ده . پــه آســمان کې شیطان آدمعلیه السلام سره د حسد له امله نافرماني وکړه او په ځمکه کې قابیل له هابیل سره د حسد لــه املــه د الله تعــالی نافرماني وکړه.

**۳_ دحسد اوغبطې ترمنځ توپیر:**

علماء حسد په دوه ډوله وېشي: حقیقي او مجازي.

الف: حقیقي حسد: د نعمت له خاوند څخه د نعمت د زوال غوښتنه ده، دا ډول حسد په صریحو نصوصو او د امــت پــه اجماع سره حرام دی.

ب: مجازي حسد : دې ډول حسد ته غبطه هم وایي او دا یو چا ته د ورکړل شوي نعمت د مثل غوښتل دي، پرته لــه دې چې د هغه شخص د نعمت زوال وغواړي .که غبطه په دنیوي شیانو کې وي، نو مباح ده او که په اخروي، یعنې تعبدي شیانو کې وي نومستحبه ګڼل کېږي . لکه چې پیغمبر ﷺ فرمایلي:( عن عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ رَسُــولَ اللَّـــهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا حَسَدَ إِلَّا عَلَى اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ آتَاهُ اللَّهُ الْكِتَابَ وَقَامَ بِهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَرَجُلٌ أَعْطَاهُ اللَّهُ مَالًا فَهُوَ يَتَــصَدَّقُ بِهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَالنَّهَار.) صحیح البخاري .

ژباړه: له حضرت ابن عمرﷺ څخه روایت دی چې پیغمبرﷺ فرمایلي دي: (حسد جایز نه دی، مګرپه دوو کارونو کې: یــو په دې کې چې الله تعالی چا ته د قرآن علم او پوهه ورکړې وي، او هغه یې شپه او ورځ تلاوت کوي او عمل پرې کــوي، او بل دا چې الله تعالی چا ته مال ورکړی وي او هغه له خپل مال څخه شپه او ورځ خیرات ورکوي .
دلته له حسد څخه غبطه مراد ده .

**۴_د حسد اسباب:**

حسد ډېر اسباب لري چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱- له محسود څخه کرکه کول: هغه داسې چې که په محسود باندې الله جل جلاله دکوم نعمت پیرزوینه کړې وي نو حاسد چــې له دغه نعمت څخه محروم وي، له هغه څخه نفرت او کرکه کوي او هغه سره بغض ساتي، او دا تصور کوي چې هغه پــر ده ځان اوچت بولي.

۲- له محسود سره د نعمت په سبب کینه ساتل: هغه داسې چې که څوک پر چا د الله جل جلاله د نعمتونو اثر ووینې او خپله لــه هغه نعمت څخه محروم وي، نو پر هغه یې د الله جل جلاله نعمت نه پیرزو کیږي او د هغه دخواری او ذلت تمنا کوي.

۳- بل داچې حاسد انسان بخیل وي او د خپل بخل له امله خلکو سره کینه ساتي.

**۵_د حسد او کینې علاج:**

کینه او حسد یو ډول ناروغي ده او باید درملنه شي . د درملنې لاری یې په لاندې توګه دي:

۱- الله جل جلاله ته پناه وروړل او هغه ته ځان سپارل.

۲- پرهیزګاري اختیارول او د الله جل جلاله څخه په هر حال کې د ویرې احساس کول.

۳- پر الله جل جلاله توکل کول او خپل ښه او بد حالت هغه ته سپارل.

۴- د زړه په پاکولو کې زیار ایستل : باید د زړه له ناروغیو څخه په پاکولو کې بنده کوښښ او زیار وباسي او که چیــری د کینې احساس وکړي لازمه ده چې په محوه کولواوپه لمنځه وړلو کې یې کوښښ وکړي.

۵- الله جل جلاله ته کامله توجه کول او په زړه کې د الله جل جلاله او د هغه د رسولﷺ مینې ته ځای ورکول او د دنیا مینه شاته کول.

۶- د ټولو ګناهونو څخه بیزاري او ورڅخه خالصه توبه ویستل.

۷- د حسد او کینې د اور په وژلو کې باید له هرې ممکنې لارې څخه کار واخیستل شي . څومره چې د حــسد علامــې زیاتیږي باید پر ضد یې ژر اقدام وشي . د مثال په توګه که له محسود سره د حاسد کرکه او نفرت په زړه کې پیدا شي بایــد ژر پر محسود د سلام اچولو، خبرو کولو او د روابطو د ټینګولو کوښښ وکړای شي.

**یادونه:** په کومو احادیثو کې چې دحسد جواز راغلې له هغې څخه غبطه مراد ده.

**۶_د کلماتو معنا:**

۱- اِیاکم: د جمع ضمیر دی، مراد ورڅخه تحذیر اوویرونه ده یعنی تاسې ځانونه وساتئ.

۲- حسد: له چا څخه د نعمت د زوال او د هغه نعمت د ځان لپاره تمنا کولو ته ویل کیږي . اسم فاعل ته یې حاسد ویــل کیږي او چا سره چې حسد ترسره کیږي هغه ته محسود وایي.

۳- یأکل الحسنات: نیکي له منځه وړي.

۴_الحطب: وچ لرګي او خاشاک.

۵_ کرکه: نفرت .

**۷_د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**۸_د زده کړې مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، د احادیثو د متونو او شروحو کتابونه، تخته، تباشیر.

## دلوست بهیر :

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو وروسته له سلام او احوال پوښتنې څخه ټولګی منظموي اوحاضرۍ اخلي بیا دتیرلوست په اړه له زده‌کوونکوڅخه پوښتنه کوي:<br>د لومړي لوست حدیث په کومې موضوع پورې تړون درلود؟<br>د لومړي حدیث ګټې څوک بیانولای شي؟<br>له دې وروسته د نوې لوست عنوان دموضوع عناصر پر تخته لیکي . | _زده‌کوونکي دې په ډله ییزه توګه د سلام ځواب ورکړي.<br>ـ زده‌کوونکي دې دښوونکي په لارښوونه عمل وکړي.<br>ـ زده‌کوونکي دې سوالونو ته ځوابونه ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>_محترم ښوونکی د حدیث شریف متن په ذهینو زده‌کوونکو لولي.<br>_ د حدیث شریف معنا په بل زده‌کوونکي لولي . په دریم زده‌کوونکي د حدیث حکمت لولي،او په بل زده‌کوونکي دحدیث ګټې لولي.<br>_ ښوونکی د حدیث شریف د هرې ګټې په برخه کې له بېلا بېلو زده‌کوونکو سره مباحثه کوي.<br>- ښوونکی د لوست لاندې عمده مطالب زده‌کوونکو ته په داسې ساده او اسانې طریقې سره وړاندې کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه واخلي.<br>۱_ د حدیث شریف راوي زده‌کوونکو ته وروپیژني.<br>۲_ د لوست د حدیث معنا، حکمت او ګټې شرحه کوي.<br>_ ښوونکی زده‌کوونکي په دې قانع کوي چې د حدیث شریف ګټې په خپل ژوند کې عملي کړي او هم د زده‌کوونکو په ګډون د حدیث شریف د نورو ګټو د راویستلو هڅه کوي او په پای کې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصه کوي. | _ زده‌کوونکي دې د ښوونکي غوښتنې عملي کړي .<br>- نورزده‌کوونکي دې لوست ته وګوری اوضروری مطلبونه دی له ځانونوسره ولیکي.<br>- زده‌کوونکي دې د لوست مطالبوته پوره توجه وکړي اوځانونه دې د لوست په بهیر کې شریک کړي.<br>- زده‌کوونکي باید د ښوونکي شرحی اوتوضیحاتوته ځیرشي.<br>- زده‌کوونکي له حدیث څخه دنوروګټو د لاسته راوړلو په غرض له ښوونکي سره مرسته وکړي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>۱- پیغمبر (ص) حسد په خورا سخته لهجه سره حرام بللی دی.<br>۲- حسد سربیره پردې چې لویه ګناه ده نورې نیکۍ هم له منځه وړي.<br>۳- حسد حرام اوغبطه جایزده. | -زده کونکي دلوست لنډیزته توجه کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی دلوست په پای کي زده‌کوونکي  د درسي کتاب په پوښتنو سره ارزوي . | – زده کونکی په فــردي شــکل د سوالونو ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه مناسبې لارښوونې کوي. | – زده‌کوونکي دې حديث په يادوزده کړي،اوهم دې دحسد د زيانونو پــه اړه يوه لنډه مقاله وليکي. |

**شپږم لوست**:

**عنوان** : د الله تعالی خوښي د مور او پلار په خوښی کې ده.

**وخت** : یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې** :زده‌کوونکي باید:

۱ – دلوست حدیث په سمه توګه ولوستلای شي.

۲ – د حدیث پر معنا،حکمت اوګټو پوه شي.

۳ – د مور او پلار د حقوقو اهمیت ته متوجه شي.

۴ – د مور او پلار د نافرماني د ګناه لویوالي ته ځیراو د نافرمانی څخه ډډه وکړي .

۵ – د مور او پلار اطاعت او خوښي حاصله او په خپل ژوند کې یې پلي کړي.

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱_د راوي پېژندنه:**

په جاهلیت کې یې نوم (العاص) و یو مهال پیغمبرﷺ ورڅخه وپوښتل چې ستا څه نوم دی؟ هغه ورته وویل: العاص (چې په عربي کې د ګنهکار معنا لري) د دې امله پیغمبرﷺ ورته وویل: ته عبدالله یعنی د اللهﷻ بنده یې .

دا جلیل القدره صحابي د عمرو بن العاصؓ زوی وو او له خپل پلار څخه دولس کاله کشر و.

د خپل پلار څخه د مخه په اسلام مشرف شوی و .

د هغو څلورو مشهورو مخورو صحابه و له جملې څخه و چې د هغوی د نومونو پیل په عبدالله سره کیږي، لکه عبدالله بن عباسؓ، عبدالله بن عمر، عبدالله بن زبیر او عبدالله ابن عمرو بن العاصؓ چې په (عبادله اربعه) سره یې شهرت درلود.

لوړ قد،غټ جسامت یې درلوده، سپینه ږیره او د سور رنګ څښتن و، چې د عمر په اخري شیبو کې یې دواړو سترګو د لید قوت له لاسه ورکړ .

د قرآن کریم حافظ، ډېر زیات قوي متواضع په حقایقو ولاړ او د باطل په مقابل کې ډېر جدی شخصیت و .

هغه شخصیت و چې پیغمبرﷺ ټول صحابه د احادیثو د لیکلو څخه منع کړي وو خو یوازې همده ته یې د احادیثو د لیکلو اجازه ورکړي وه.

اللهﷻ ورته د تورات د لوستلو استطاعت ورکړی و.

- د افریقا په فتحه کې د نورو درې واړه عبادله ؤ سره یې ګډون درلود . له دې کبله دغې فتحې ته (جیش العبادلة) هم وایي.
- د عثمان بن عفان ؓ پر سر د شخړې پر وخت یې ګوښه نشیني اختیار کړه . د شام د فتحې پر وخت له خپل پلار سره ملګرئ و .
- د هغه مدرسې د مؤسسینو او مدرسینو له جملې څخه چې په مصر کې د فسطاط او اسکندریې په ښار کې جوړه شوي وه . د خپل پلار د وفات څخه وروسته حضرت معاویهؓ د مصر والي مقرر کړ. د هجرت په ۶۵ کال د عمر په ۷۲ کلنی کې په شام کې وفات شو.

**۱_د حدیث شرحه او توضیح:**

له مور او پلار سره نیکی او احسان کول په هر مسلمان باندې لازم او واجب دي ځکه چې د اللهﷻ د رضایت لامل ګرځي او د مور او پلار نافرماني او ازارول ستره ګناه ده ځکه چې دا د اللهﷻ د قهر او غضب سبب ګرځي.

په حدیث شریف کې راځي (د مور او پلار نافرماني مه کوه که درته حکم وکړي چې خپله ټوله دنیا او مالداري پریږده، نــو یې پریږده).

**۱– له مور او پلار سره نیکې پر کفایي جهاد او هجرت غوره ده :**

له مور او پلار سره نیکې پر کفایي جهاد او هجرت غوره والی لري په حدیث شریف کې راځــي ابوســعید الخــدري رضی الله عنه فرمایي یو څوک د یمن څخه د پیغمبر ﷺ خوا ته په هجرت راغې رسول الله ﷺ ورڅخه وپوښتل آیا په یمن کې دې مور او پلار شته؟ هغه ځواب ورکړ هو! پیغمبر ﷺ ورڅخه وپوښتل: آیا هغوی درته زما خواته د راتلو اجازه درکړې وه؟ هغه وویــل نــه. پیغمبر ﷺ ورته وفرمایل: بیرته ولاړشه او ورڅخه د هجرت اجازه وغواړه .که چیرې یې درته اجازه درکړه، خو غــوره ده او که نه نو له هغوی سره نیکي کوه ).

**۲– غوره عمل له مور او پلار سره نیکي کول دي:**

له حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی ما له پیغمبر ﷺ څخه و پوښتل چې کوم یو عمل الله جل جلاله ته ډیــر غــوره دی؟ هغه وفرمایل: په خپل وخت سره د لمونځ اداکول. بیا مې ورڅخه وپوښتل . د دې څخه وروسته؟ هغه ځواب راکړ له مــور او پلار سره نیکي کول، بیا می وپوښتل له دې څخه وروسته؟ هغه راته وفرمایل: د الله جل جلاله په لاره کې جهاد کول)

**۳– له مور او پلار سره نیکي کول د بنده عمر زیاتوي:**

له معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبر ﷺ فرمایلي: څوک چې د مور او پلار سره نیکي کوی، نو هغه ته دې مبــارک شي او الله جل جلاله دې ورته په عمر کې اوږدوالی ور په برخه کړي ).

په بل حدیث شریف کې راځي عبدالله ابن عمر رضی الله عنه فرمایي: پیغمبر ﷺ فرمایلي دي:درې کسان دي چې د قیامت پــه ورځ بــه الله جل جلاله ورته د رحمت په نظر نه ګوري: یو د مور او پلار نافرمانه شخص، دویم د شرابو جوړوونکی، او دریم شخص په خپلو نیکیو باندې احسان کوونکې)

**۴_ له مور او پلار سره د نیکۍ کولو څرنګوالی:**

تر څو پورې چې مور او پلار پر ناروا امر نه وي کړی په نفلي عبادتونو د هغوی خبره وړاندې او مخکی کول، اولاد باید لــه هغه څه نه ځان وژغوري چې هغوی یې نه غواړي، مور او پلار ته نفقه ورکول، د هغوی په خدمت کــې زیــار او زحمــت ویستل، د هغوی په مخکې د ادب خیال ساتل او د هغوی وقار پرځای ساتل، د هغوی په مخکې په لوړ آواز نه غږیدل او نــه هم خپل نظر د هغوی پر نظر غوره او سودمند ګڼل .اولاد باید مور او پلار په درناوۍ یاد کــړي او د هغــوی د نــوم لــه اخیستلو څخه ډډه وکړي . د تللو پر وخت ورڅخه مخکې تګ ونکړي، بلکې د هغوی پسې دې وروســته والــی اختیــار کړي، که چیرې له هغوی څخه کومه سختي او یا قهر او ناشونې کړنه ولیدل شي باید پر هغې له صبر څخه کــار واخیــستل شي.

**۵_د مور او پلار د نافرمانۍ څرنګوالی:**

هر هغه کړنه او عمل چې د مور او پلار د اذیت او خپګان سبب ګرځي د مور او پلار عقوق یا نافرماني بلل کیــږي، برابــره خبر ده چې که هغه کړنه په خوله وي، یا په عمل کې او یا په رویه لکه د هغوی په مخ کې داسې خبرې کول چې هغوی یــې نه غواړي یا د هغوی دخبرو ځواب په ناوړو الفاظو سره ورکول یا د هغوی پر خبرو خپلی خبری او ویناوې غــوره ګڼــل، د هغوی په وړاندې په لوړ آواز غږیدل، د هغوی خبرې قطع کول، د هغوی مشوروته اهمیت نه ورکول، داسې رویه اختیارول چې د بی ادبۍ څرګندونه کوي یا پر هغوی ځان لوړ ګڼلو مطلب ورځنې څرګندیږي او داسې نور.

**۶_د کلماتو معنا:**

**۱_سخط: د السخط کلمه د رضا د کلمې ضد ده چې شدید غضب او قهر ته ویل کیږي . کله چې یې الله ﷻ تــه نــسبت وشي مراد ورڅخه د الله ﷻ د عذاب نازلیدل وي.**

**۲_الوالدین: د والد تثنیه ده . هغه ځوک چې د انسان د پیدایښت سبب وي، چې اطلاق یې په مور او پلار دواړو کیږي.**

**۷_د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**۸_د زده کړې مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، د حدیثو د متونو او شروحو کتابونه، تخته، تباشیر.

## دلوست بهیر :

| وخت | د ښوونکي فعالیت | دزده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو وروسته له سلام او احوال پوښــتنې څخه ټولګی منظموي اوحاضرې اخلــي بیــا دتیرلوســت پــه اړه لــه زده‌کوونکوڅخه پوښتنه کوي: ځوک د مخکیني لوست لنــډیز ویــلای شي؟<br>د سم ځواب له اوریدلوڅخه وروسته د نوي لوست عنــوان، د حــدیث متن او د لوست عناصر پر تخته لیکي. | _زده‌کوونکي دې په ګروپي ډول د سلام ځواب ووایي.<br>ـــ زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دندې ښوونکي ته سپاري. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>_ محترم ښوونکی لومړی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې لوست په پټــه خوله له ځانه سره ولولي .<br>ـــ بیا ښوونکی پر یوه زده‌کوونکي د حدیث شریف مــتن او د حــدیث ژباړه لولي .په بل زده‌کوونکي د حدیث شریف حکمت اوګټې لولي.<br>_ محترم ښوونکی د حدیث موضوع تشریح کوي، دلوست هره ګټــه زده‌کوونکو ته روښانه کوي او زده‌کوونکي دې ته هڅوي چې د لوســت محتویات په خپل ژوند کې عملي کړي.<br>_د لوست فعالیت په ګروپي شکل ترسره کوي.<br>− ښوونکی په کمزورو زده‌کوونکو یو یوپراګراف لولي.<br>_د لوست په پای کې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصــه او زده‌کوونکو ته یې بیانوي. اود زده‌کوونکو د پوښتنو ځواب وایي. | _زده‌کوونکي دې په غــور ســره لوست په پټه سره ولولي او پوښتنې دې له ځانه سره ولیکي .<br>_ زده کوونکي دې دلوست شرحې او توضیح ته غوږ کیږدي .<br>_ زده کوونکي دې دلوست فعالیت په حلولو کې فعاله ونډه واخلي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>۱− د مور او پلار د خوښۍ تر لاسه کول فرض دي.<br>_ د الله تعالی خوښي د مور او پلار په خوښۍ کې ده او دالله تعالی غوسه د مور او پلار په غوسه کې ده.<br>۲− په مور او پلار غوسه کول حرام کار دی . | _ زده کوونکي دې دلوست لنډیزته غوږ کیږدي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ۳– د دنیا اواخرت نیکمرغي او بریالیتوب د مور اوپلار په خوښۍ پورې تړلی دی . | |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي ډول دکتاب د پوښتنو له مخې ارزوي. | ـ زده‌کوونکي دې په خورا ادب سره پوښتنو ته شفاهي ځوابونه ورکړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه لارښوونې کوي. | – زده‌کوونکي دې حدیث په یادو یادکړي او د (څرنگه کولای شو د مور او پلار خوښي تر لاسه کړو؟) ترعنوان لاندې دې یوه مقاله ولیکي. |

**اووم لوست**:

**عنوان:** د مور حق

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې**:زده کوونکي باید:

۱– د مور او پلار د حقونو (حقوقو)ترمنځ توپیر وپیژني.

۲– د حدیث په الفاظو کې د مکررو سوالونو په حکمت پوه شي.

۳– له مور سره د زیاتې نیکۍ کولو اهمیت ته متوجه شي.

۴– د مور له هغه کړاوونو څخه خبر شي چې له ماشوم سره یې ګالي.

۵– په ژوند کې له مور سره نیکي کول عملي کړي.

**ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د راوي پېژندنه:**

د ابوهریره پېژندنه په څلورم لوست کې تیره شوې ده.

د هغه صحابي نوم چې له پیغمبرﷺ څخه یې دا پوښتنه وکړه، معاویه بن حیده وچې د جهز بن حکیم رحمة الله علیه نیکه و.

**۱_د حدیث د موضوع په اړوند توضیحات:**

په دې خبره د ټولو علماوو اتفاق دی چې له مور او پلار سره نیکي ا و ښه سلوک پر اولادونو واجب دی خو په دې خبره کې چې د دوی دواړو ترمنځ کوم یو ډېر حقدار دی او کوم یو یې د نیکۍ کولو د لومړي توب حق لري؟ دنظرونو اختلاف شته.

د جمهورو علماوو نظر دا دی چې مور د پلار په پرتله ډېره حقداره ده ځکه چې الله ﷻ په قرآن کریم کې په څو ځایونو کې هغه نقطې او اسباب ذکر کړي چې هغه په خپله د مور د حق په لومړیتوب دلالت کوي لکه چې الله ﷻ فرمايي: (وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلَى وَهْنٍ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ...). د لقمان سوره– ۱۴ آیت

**ژباړه:** او موږ وصیت او سپارښتنه کړې ده انسان ته د مور او پلار(د حق) په هکله .د ده مور دی دکمزورۍ دپاسه کمزورۍ په حال کې په ګېډه ګرځولی دی او هغه ته د تي ورکولو دوه کلنه موده ده.

په پورتنې آیت کې هغو کړاوونو او ستونزو ته ګوته نیول شوې چې مور یې له ماشوم سره ګالي لکه پوره نهه میاشتې د ماشوم په ګېډه ګرځول، د ماشوم د زیږېدلو تکلیفونه، ماشوم ته دوه نیم کاله شیدې او د وجود د وینې زوښه ورکول . دا ټول هغه دلایل دي چې د مور حق د پلار په پرتله زیاتوي .

همدا راز که چیرې دې حدیث شریف ته ځیر شو ګورو چې له پیغمبرﷺ څخه څو کرته دا پوښتنه وشوه چې زما د نیک صحبت زیات حقدار څوک دی او پیغمبرﷺ ورته په تکرار سره مور په ګوته کړې ده او په وروستي ځل یې د پلار نوم اخیستی . داهم د دې خبرې کره ثبوت او دلیل دی چې مور د هر ډول نیکۍ د لومړي توب حقداره ده.

بله دا چې مور د پلار په نسبت کمزورې ده نه خو د خپل حق غوښتنه کولای شي او نه له خپل ځان څخه دفاع کولای شي او د ژوند په چارو کې هر چا ته ډېره اړه وي . نو پکار ده داسې څوک هرو مرو ورسره مل وي چې مرسته ورسره وکړي او په ورځنیز ژوند کې ورته لاس ورکړي د کړاوونو او غمونو پر وخت ورته لاس ورکړي او حاجتونه یې پوره کړي.

**۲_د مور د حقوقو څو نمونې:**

د مور اطاعت او له نافرماني څخه يې ځان ژغورل، تل ورسره نيکي کول، خپلې د مهربانۍ وزرې ورته غوړول، د رټلو څخه يې ځان ساتل، خبرو ته يې غوږ کيښودل، په اوامرو يې خوښي ښکاره کول، خپله مينه او اخلاص ورته مخکې کول، مخامخ ورته په ادب کيناستل، پرهغې د احسان بارولو څخه ځان ژغورل، په کارونو کې ورسره مرسته کول، د تکليـــف رســولو او رټلو څخه يې ځان ژغورل، غږ ته يې ژر ځواب ورکول، د هغې د خوشحالۍ خيال ساتل . د مخامخ کېدو پر وخـــت پـــرې سلام اچول، د طبيعت خيال يې ساتل، هغه څه کول چې هغه پرې خوشحاليږي .

**۳_د کلماتو معنا:**

**۴_ د حمل تکليفونه :** په ګېډه کې د ماشوم د ګرځولو شپو او ورځو ته د حمل موده ويلي کېږي چې لږه موده يـــې شـــپږ مياشتې او زياته موده يې دوه کاله ده او امام شافعي رحمة الله عليه د حمل زياته موده څلور کاله بولي.

**۵_ د تي ورکولو (ارضاع)** موده د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه په نزد دېرش مياشتې ده او د يارانو په نـــزد دوه کالـــه ده او امام زفر رحمة الله عليه د رضاع موده درې کاله ښودلې ده.

**۴_د تدريس طريقې:**

توضيحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**۵_د زده کړې مرستندويه توکي:**

درسي کتاب، د احاديثو د متونو او شروحو کتابونه، تخته، تباشير.

**دلوست بهير :**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو وروسته له سلام او احوال پوښـــتنې څخه ټولګی منظموي اوحاضرې اخلـــي بيـــا دتيرلوســـت پـــه اړه لـــه زده‌کوونکوڅخه پوښتنه کوي:څوک تير لوست په يادو ويلای شي ؟<br>د حديث له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان، دحديث مـــتن او د لوست عناصر پر تخته ليکي، او د يوې پوښتنې په مطرح کولـــو ســـره زده‌کوونکي نوي لوست ته هڅوي. | _زده‌کوونکي دې پـــه ګروپـــي ډول دسلام ځواب ووايي.<br>ـــ زده‌کوونکي دې په نوبت سره تير حديث له يادو ووايي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>_ محترم ښوونکی لومړی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه له ځانه سره ولولي .<br>ـــ ښوونکی پر يوه زده‌کوونکي د حديث شريف متن او د حديث ژبـــاړه لولي، په بل زده‌کوونکي د حديث شريف حکمت اوګټې لولي.<br>ـــ په همدې ډول محترم ښوونکی زده‌کوونکي له ځانه سره دلوست پـــه جريان کې شريکوي.<br>_ محترم ښوونکی د حديث موضوع تشريح کوي،او د لوست هره ګټه زده‌کوونکو ته روښانه کوي او زده‌کوونکي دې ته هڅوي ترڅودلوست محتويات په خپل ژوند کې عملي کړي.<br>– ښوونکی په کمزورو زده‌کوونکو يو يو پراګراف لولي. | _زده‌کوونکي دې په غور سره لوست په پټه سره ولولي اوستونزې دې لـــه ځانه سره يادداشت کړي.<br>_ زده کوونکي دې دلوست شـــرحي اوتوضيح ته غوږ کيږدي. |

| | | |
|---|---|---|
| | _دلوست په پای کې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصـــه او زده‌کوونکو ته یې بیانوي. اود زده‌کوونکو سوالونو ته ځواب وایي. | |
| | **د لوست لنډیز:**<br>_ هغه تکلیفونه چې مور یې د خپل اولاد په وړاندې ګالي عبارت دي له: د حمل تکلیفونه، د ولادت تکلیفونه چې دا سخت او ستونزمن پړاو دی.<br>د تي ورکولو د وخت تکلیفونه، مور د خپلو غوښو او هډوکو زېښنل شوي څیزونه خپل ماشوم ته د شیدو په بڼه ورکوي .<br>_ د پلار دحق په پرتله د مور د حق لومړیتوب او مخکې والی: مور او پلار دواړه پر خپل اولاد زیات حقونه لري، خو مور د ذکر شوو دلایلو په رڼا کې ډېر زیات حقونه او ځانګړی مقام لري، اولاد باید د مور اطاعت، پر هغې باندې شفقت او مهربانۍ ته زیاته پاملرنه وکړي.<br>– د مور سره په نېکۍ کولو ډېر ټینګار: نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مور نوم درې ځلې ذکر کړی دی او په څلورم ځل یې پلار ذکر کړی دی. | _ زده کوونکي دې دلوست لنډیزتـــه غوږ کیږدي. |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي ډول ارزوي او د لوست پر پوهېدلو ځان ډاډ منوي. | _ زده‌کوونکي دې په خورا ادب سره سوالونو ته شفاهی ځوابونه ورکړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناســـبې لارښـــوونې کوي. | – زده‌کوونکي دې دحدیث معنا پـــه یادو یاده کړی، او هم دې د مـــور د حقوقو په باره کې پنځه کرښې مقاله ولیکي. |

**اتم لوست**:

**عنوان:** ظلم، تورتم او تیارې دي.

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱_ د ظلم له حقیقت او ډولونو سره آشنا شي.

۲_ د ظلم له بدو پایلو څخه خبر شي.

۳– د ظلم له ټولو شکلونو څخه ځانونه وژغوري.

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د راوي پیژندنه:**

دراوي په باره کې پوره معلومات په دویم لوست کې تیر شوي دي .

**۱_د حدیث شریف معنا او شرحه:**

(الظلم ظلمات یوم القیامة).د دې حدیث په معنا کې درې قوله دي:

ا– ظلم به د ظالم لپاره د قیامت په ورځ د تورو تیارو په شکل کې وي، روښنایي ته به لار نه مومي،لکه څرنګه چې د نورو مؤمنانو مخې،کیڼ او چپ لورې ته روښنایې وي.

ب– د دې تیارو څخه سختی او تکلیفونه مراد دي، یعنې د ظلم خاوندان به په سختیو او زحمتونو کې اخته وي.

ج– بل قول دا دی چې دا حدیث د الله ﷻ له نیونې او د ډول ډول عذابونو څخه کنایه ده، یعنی په ظالم بـه د الله ﷻ ډول ډول عذابونه نازلیږي.

**۲_د ظلم معنا او حرمت یې:**

ظلم د عدالت ضد تیري او تجاوز ته ویل کیږي.

ظلم هغه بده پدیده ده چې په ټولو ادیانو کې مردوده ده. ظلم هغه بد خصلت دی چې د سرکښو، جابرو، او متکبرو لخـوا ترسره کیږي.

ټول ادیان دځو خبرو ساتنه ضروري بولي : د نفس ساتنه، د نسب ساتنه، د عرض او عزت ساتنه، د عقل او مال ساتنه او لـه ظلم څخه ځان ژغورل .

ظلم چې په هر رنګ او شکل سره وي په اړه یې په قرآن کریم او نبوي احادیثو کې زیات وعید راغلي دي . برابره خبـره ده که هغه د الله ﷻ په حق کې ظلم وي، لکه له الله ﷻ سره شرک او که د بندګانو په حقوقو کې وي، لکه پر چا د ژبې پـه وسیله ظلم کول د چا کنځل، رټل، د چا غیبت کول، پر چا بهتان تړل، پر چا مسخرې کول، پر چـا د درواغـو ګـواهي ورکول او داسې نور . که په نورو لارو تیری کول وي، لکه د چا وژل، وهل، ټکول، په حرامه طریقه د چا مالونه خـوړل، د چا مال غلا کول، د چا د عزت او ناموس بې حرمتي کول، په امانتونو کې خیانت کول، د خلکو پر حقوقو او منافعو تجـاوز او تیري کول او داسې نور.

د الله ﷻ په حق کې تر ټولو لوې ظلم له الله ﷻ سره شرک کول دي او د انسانانو په حق کې تر ټولو لوي ظلم د بـې ګنـاه انسان وژل دي .

الله ﷻ د ظالم لپاره ډېرې دنیوي او اخروي درندې سزاګانې ټاکلي دي، لکه چې فرمایي: (أَلَا إِنَّ الظَّالِمِينَ فِي عَـذَابٍ مُقِـيمٍ [الشوری : ٤٥]

ژباړه: خبردار! بیشکه ظالمان به په داسې عذاب کې وي چې هغه به همیشه وي.

په بل آيت شريف کې فرمايي: (وَتَرَى الظَّالِمِينَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ يَقُولُونَ هَلْ إِلَى مَرَدٍّ مِنْ سَبِيلٍ [الشورى : ٤٤]
ژباړه: اوته به ووينې ظالمان چې کله دوی د(الله) عذاب ويني نووبه وايي :ايا اوس دبيرته ستنيدوکومه لاره شته؟
په بل ځای کې د ظالم بد حالت داسې بيانوي: (وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَى يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا [الفرقان : ٢٧]
ژباړه: اوياده کړه هغه ورځ چې ظالم انسان به خپل لاسونه چيچي او وايي به:کاشکې ما د پيغمبرﷺ ملګرتياکړې وای.
پيغمبرﷺ په يو حديث شريف کې فرمايي: (اللهﷻ ظالم ته يو څه وخت مهلت ورکوي، خو چې کله يې ونيسي نو بيا ورڅخه خلاصون نشي موندلای).
د ظالم خصم به د قيامت په ورځ اللهﷻ وي. همدا راز هر ظالم به د قيامت په ورځ د رسوايي يوه نبنه لري چې پر هغې به پيژندل کيږي.
له ظالم څخه به مظلوم د قيامت په ورځ ضرور بدله او قصاص اخلي، نو که چيرې چا څوک وهلي يا يې په بل ډول آزار کړی وي له هغه څخه به د اللهﷻ په حضور کې بدله اخلي.
ظالم شخص سره د دې چې ډېرې نيکيانې به يې کړي وي، خو که مظلومان ورڅخه خپل حقونه واخلي په پای کې به بې عمله او مفلس پاتې شي .

**٣_ دظلم ډولونه:**

ظلم په درې ډوله دی:

١_ د بنده ظلم له الله تعالی سره دا دی چې : بنده له الله تعالی سره شريک ونيسي او دا تر ټولو لوی ظلم دی.
٢_ د بنده ظلم له بنده سره : دا هم ناروا دی، الله تعالی حرام ګرځولی دی او پيغمبرﷺ هم پر انسان باندې له ظلم کولو څخه منع کړې ده. برابره خبره ده چې د هغه پر نفس وي او يا يې پر مال وي.
٣_ د ګناهونو د ارتکاب له امله د بنده ظلم پر خپل ځان باندې، د دې ظلم درجه له شرک څخه ټيټه ده.

د ظلم سزا هم په درې ډوله ده:

اول: د شرک سزا: د مشرک سزا په دوزخ کې دايمي ژوند دی. اللهﷻ دې موږ او تاسې ورڅخه وساتي . څرنګه چې الله تعالی فرمايي: ((إِنَّهُ مَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ)) [المائدة : ٧٢]
ژباړه: په تحقيق څوک چې له الله تعالی سره شريک ونيسي، نو الله تعالی ورباندې جنت حرام کړی دی او ځای به يې دوزخ وي اونه به وي د ظالمانولپاره څوک مرستندويه.
دويم: پر بنده باندې د بنده د ظلم سزا: اور ته لويدل دي، مګر دا چې مظلوم ظالم ته عفوه وکړي او دا متفاوته ده که ظلم، قتل وي، نو د دې سزا سخته وي نسبت هغه ظلم ته چې له وژلو را ټيټ وي، لکه وهل د چا ټول مال اخيستل او يا لږ ما ل اخيستل.
دريم: د ګناهونو د ارتکاب له امله پر خپل ځان باندې د ظلم سزا: د دې ډول ظلم سزا د ګناه په اندازه ده که ګناه کبيره وه او له شرک څخه راټيټه وه، نو سزا د ګناه په اندازه ده . او که ډېره راښکته درجه کې وه، نو سزا به يې هم همداسې وي . دغه ډول ګناه په توبه او استغفار سره له منځه ځي.
په يو قدسي حديث کې راځي چې اللهﷻ د ظلم په باره کې داسې فرمايلي دي: ((يا عبادي اني حرمت الظلم على نفسي و جعلته بينكم محرما فلا تظالموا)). رواه مسلم باب تحريم الظلم : ١٦/٨
ژباړه:(ای زما بندګانو زه له ظلم څخه پاک يم او ستاسې ترمنځ مې هم حرام ګرځولی دی، نو يو پر بل ظلم مه کوئ )

**د کلماتو معنا:**

۱ــ ظلم:په عربی لغت کې:کمې د یو شي له خپل ځایه بې ځایه کولوته وایي.

۲ــظلمات: د ظلمة جمع ده او د ظلم د اسبابو د زیاتوالي له امله جمع شوی دی.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**د زده کړې مرستندویه توکي:**درسي کتاب، د حدیثو د متونو او شروحو کتابونه، تخته، تباشیر.

## دلوست بهیر :

| وخت | د ښوونکي فعالیت | دزده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:** محترم ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو وروسته له سلام او احوال پوښتنې څخه ټولګی منظموي اوحاضرې اخلي بیا دتیرلوست په اړه له زده‌کوونکوڅخه پوښتنه کوي:څوک د پورته حدیث معنا له یادو ویلای شي ؟ له پوښتنې څخه وروسته د نوي لوست عنوان، د حدیث متن او د لوست عناصر پر تخته لیکي او د یوې پوښتنې په کولو سره زده‌کوونکي نوي لوست ته هڅوي. | ـزده‌کوونکي دې په ګروپي ډول دسلام ځواب وواېي. ــ زده‌کوونکي دې په نوبت سره د ښوونکي سوالونوته ځوابونه و رکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **دلوست وړاندې کول:** ـ محترم ښوونکی لومړی دحدیث متن دنمونې په ډول لولي. ــ بیا پر یوه زده‌کوونکي دحدیث ژباړه په لوړ آواز لولي،په بل زده‌کوونکي د حدیث شریف حکمت اوګټې لولي. ـ محترم ښوونکی د حدیث موضوع تشریح کوي او د لوست هره ګټه زده‌کوونکو ته روښانه کوي او زده‌کوونکي دې ته هڅوي چې د لوست محتویات په خپل ژوند کې عملي کړي. – ښوونکی په کمزورو زده‌کوونکو یو یو پراګراف لولي. ـپه پای کې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصه او زده‌کوونکو ته بیانوي او هم د زده‌کوونکو ستونزې حل کوي . | ـزده‌کوونکي دې په غور سره دحدیث متن لوستلو ته ځیرشي. ـ زده کوونکي دې دلوست شرحي اوتوضیح ته غوږ کیږدي. |
| | **د لوست لنډیز:** ـظلم د سختیو، دښمنیو، کینې او انتقام اخیستلو لامل ګرځي د خلکو آرامي او اطمینان له منځه وړي، نو لازمه ده چې د هر ډول ظلم مخه ونیول شي. ـظلم، او د خلکو پر ځان، مال او آبرو باندې تیری کول حرام او لویه ګناه ده. ـ هرظالم به د قیامت په ورځ خامخا د خپل ظلم سزاویني. | ـ زده کوونکي دې دلوست لنډیزته غوږ کیږدي. |
| | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي یاکتبي ډول ارزوي او د لوست پر پوهېدلو ځان ډاډ منوي. | ـ زده‌کوونکي دې په خورا ادب سره سوالونوته شفاهي اویا کتبي ځوابونه ورکړي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | – زده‌کوونکي دې دحدیث متن په یادو زده کړي او د ظلم د ناوړو اغیزو په اړه دې یوه مقاله ولیکي. |

**نهم لوست**:

**عنوان:** د نرم خوی فضیلت

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱– د حدیث په معنا پوه شي او سم یې ولوستلای شي.

۲– د حدیث د هر لفظ په لغوي معنا وپوهیږي.

۳– په ژوندانه کې د رفق ارزښت او اهمیت وپیژني.

۴– ځانونه په نرم خوی عادت کړي .

**ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱_د راوي پیژندنه:**

پیغمبرﷺ حضرت عایشه رضي الله عنها په أم عبدالله باندې نومولې وه . بي بي عایښې رضي الله عنها د عبدالله بن زبیر تـــرور وه ، کله به پیغمبرﷺعائشه رضي الله عنها د حمیراء په نوم هم یادوله .

حضرت عائشة رضي الله عنها ډېر زیات فضایل لري، چې په اړه یې په قرآن کریم کې ځو آیتونه نـــازل شـــوي دي چـــې دا فضیلت د بلې کومې بي بي نه دی په برخه شوی د دې خصوصیتونو شمیر ۴۰ ته رسیږي .

د پیغمبر ﷺ سره یي نکاح له هجرت څخه دوه کاله وړاندې په مکه مکرمه کې د ام المؤمنین خدیجة الکبری رضي الله عنهـــا له وفات څخه وروسته په داسې حال کې، چې شپږ کلنه وه، وتړل شوه، او بیا په مدینه منوره کې د هجرت ددویم کال پـــه لومړیو کې د شوال په میاشت کې په نهه کلنې کې واده شوه، پیغمبرﷺ سره یې ټول اته کاله او پنځه میاشتې ژوند تیر کړ او کله چې پیغمبرﷺ وفات شو نو عایشة رضي الله عنها اتلس کلنه وه.

له پیغمبرﷺ څخه یې دوه زره دوه سوه لس (۲۲۱۰) حدیثونه روایت کړي دي .

له مشهورو زده‌کوونکوڅخه یې عروه بن زبیرﷺ، چې خوریه یې کیده، امام قاسم (رح) چې وراره یې کیده، امام نافع (رح)، حضرت عکرمهﷺ امام مجاهد (رح)، امام عطاء، شعبي، اسود، سعید بن المسیب، مسروق او داسی نـــور زیـــات کـــشران صحابه او لوی لوی تابعین دي.

له ډېرو صحابه وو سره به یې په مسایلو کې مباحثه کوله او پر ځلرویشتو صحابه وو یې علمي نیوکې کړي دي.

عایشه رضي الله عنها د هجرت په ۵۸ کال د حضرت معاویهﷺ د خلافت په دوران کې د رمضان المبارک په دولسمه نیته د سه شنبی په شپه په مدینه منوره کې له فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

د وصیت له مخې یې حضرت ابوهریرهﷺ په شپه کې جنازه وکړه او په جنت البقیع کې خاورو ته وسپارل شوه.

**۲_د حدیث شریف د مطلب په اړه توضیحات:**

رفق عربي کلمه ده چې مراد ورڅخه په کړو وړو ویناو او چال چلن کې د نرمۍ څخه کار اخیستل دي . انسان باید د ژوند په ټولو چاروکې له نرمۍ څخه کار واخلي، لکه :له خلکو سره په اخیستلو او خرڅولو کې نرمي کول، په نرمه لهجه خلـــک نیکې لارې ته رابلل، له خپلو خپلوانو او ګاونډیانو سره په نرمه او خوږې لهجې ژوند تیرول، له چـــا څخـــه د څـــه شـــي د غوښتلو پر وخت یا چاته د کوم څیز د ورکولو پر وخت نرمي غوره کول، په خپل کور، خونې، ټولګې کې په نرمـــه لهجـــه خبرې کول، دا ټول هغه ځایونه دي چې باید مسلمان په کې نرمي غوره او د خپل ځان عادت وګرځوي همدا د پیغمبـــرﷺ

خوې او سيرت و، په مهربانۍ سره راشه درشه او ژوند تيرول د مؤمن ځلانده صفت دی چې ټولنې ته خوښــې او رضــايت وربښي.

د نرمۍ ضد بدخويي، سخت الفاظ او تيزي کول دي چې نه يې الله ﷻ خوښوي او نه يې د الله ﷻ بنده ګان، د داسې خــوی ښښتن په ټولنه کې منفور او خلک ورڅخه کرکه او نفرت کوي. په حديث شريف کې راغلي:((من يحــرم الرفــق يحــرم الخير کله))

ژباړه:څوک چې له نرمۍ څخه محروم شو هغه له ټول خير څخه محروم شو.

**۳ـ پر څارويو مهرباني او نرمي کول:**

لکه څرنګه چې پر انسانانو مهرباني او له هغوی سره نرمي لازمه ده، همدا راز پر څارويو مهرباني کول او له هغوسره نرمــې کول ضروري ده،له هغورسره جفا او سختي کول ناوړه عمل دی . په احاديثو کې راغلي چې يوه ښځه د پيشو په وجه جهــنم ته داخله شوه په بل حديث کی راغلي چې بله ګنهکاره ښځه پر سپي باندې د مهربانۍ له کبله جنت ته داخله شــوه. (شــرح بلوغ المرام)

د ذبحې پر وخت هم بايد له څارويو سره له نرمۍ او ترحم څخه کار واخيستل شي، پيغمبرﷺ يو څوک وليد چې پــسه يــې څملولای و او چاړه يې تيره کوله . پيغمبرﷺ ورته وويل: آيا ته غواړې چې دوه ځله يې ووژنې؟!!

هغه سړي وويل، څنګه وکړم يا رسول اللهﷺ؟رسول الله ﷺورته وويل: ولې دې مخکې له دې چې هغه څملوې چاړه نه تيــره کوله ؟!!! (معجم الکبير للطبراني)

په بل حديث کې پيغمبرﷺ فرمايي: ((بيشکه الله ﷻ نيکي او مهرباني په هرڅه کې لازمه کړې ده، نو کله چې تاسې څــوک وژنئ (په قصاص يا حدودو کې)) نو په نيکه طريقه يې ووژنئ يعني داسې آله استعمال کړئ چې مرګ ډېر ژر ترسره شــي او چې کله کوم څاروی ذبحه کوئ، نو په ښه شان سره يې ذبحه کړئ . پکار ده چې تيز کړي يو د ستاسې څخه خپله چاړه او خپلې مذبوحې ته راحت او آرامي ورکړي) ابو داؤود

**۴ـ د رفق ګټې:**

۱– الله ﷻ په ټولو کارونو کې نرمي او رفق خوښوي.
۲– رفق او نرمي د ټولو نيکيو او ښيګڼو سرچينه ده.
۳– رفق او نرمي د جنتيانو صفت دی.
۴– نرمي د انسان مقام او حيثيت لوړوي.
۵– د دې خوې خاوند تل خوښ او آرامه وي .

**د کلماتو معنا:**

۱– کنت علی بعير: پر يو اوښ باندې سپره وم.

**د تدريس طريقې:** توضيحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**د زده کړې مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د حديثو دمتونو او شروحو کتابونه، تخته، تباشير او نور.

دلوست بهیر :

| وخت | د ښوونکي فعالیت | دزده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی وروسته له سلام اچولو،حاضري اخیستلو،اوکورنۍ دندې له کتلو د زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي :<br>● څوک د مخکیني لوست حدیث به یادو ویلای شي؟<br>● څوک د مخکیني لوست دحدیث ژباړه ویلی شي؟<br>دځواب له اورېدلووروسته د نوي لوست عنــوان، د حــدیث مــتن او د لوست عناصر پر تخته لیکي اود یوې پوښتنې په کولو سره زده‌کــوونکي نوي لوست ته هڅوي. | ــ زده‌کوونکي دې په ګروپــي ډول د سلام ځواب وو ایي.<br>ـــ زده‌کوونکي دې په نوبت ســره دښوونکي سوالونوته ځوابونه وایې . |
| ۲۵ دقیقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>ــ محترم ښوونکی لومړۍ له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه خوله له ځانه سره ولولي .<br>ـــ بیاښوونکی پر یوه متوسط زده‌کوونکي د حدیث شریف متن دحدیث شریف حکمت اوګټې لولي نیمګړتیاوې یې سموي .<br>ــ محترم ښوونکی د حدیث موضوع تشریح کوي او د لوست هره ګټه زده‌کوونکو ته روښانه کوي، زده‌کوونکي دې ته هڅوي ترڅودلوست محتویات په خپل ژوند کې عملي کړي.<br>ــپه پای کې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصه او زده‌کوونکو ته یې بیانوي. او د زده‌کوونکو پوښتنو ته ځوابونه وایي . | ــزده‌کوونکي دې په غــور ســره لوست په پټه سره ولولي او ستونزې دې له ځانه سره یاد داشت کـــړي اودلوست په اخر کې دې مطــرح کړي.<br>–نور زده‌کوونکي دې لوست تــه متوجه شي.<br>ــ زده‌کوونکي دې دلوست شرحې اوتوضیح ته غوږ کېږدي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>– تونده وینا او لهجه زیاتره د ظلمونو، دښمنیو، جګړو او خفګانونو لامل ګرځي له همدې امله پیغمبر(ص) د ژبې په نرمۍ او لطف امر کړی دی .<br>–انسان باید په خپلو خبرو کې محتاط وي او کوښښ وکړي چې مهرباني، شفقت او نرمې خبرې د ځان عادت وګرځوي تر څو الله تعالی او د هغه بندګان ورسره محبت پیدا کړي .<br>– پر حیواناتو او ټولو ژوندیو ژوو شفقت او مهرباني کول لازم دي .<br>– له بد خویۍ څخه ځان ژغورل لازم دي، ځکه چې د بد خویۍ په حالت کې انسان خپل اعصاب له لاسه ورکوي او کله نا کله ورڅخه داسې خطرناک کار ترسره شي، چې بیا ورباندې پښېمانه وي.<br>– د نرمۍ او مهربانۍ له کبله هر کار ښائسته کېږي. | ــ زده‌کوونکي دې دلوست لنډیزته غوږ کېږدي. |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي ډول ارزوي او د لوست پر پوهېدلو ځان ډاډمنوي . | ــ زده‌کوونکي دې په خــورا ادب سره سوالونوته شــفاهی ځوابونــه ورکړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه مناسبې لارښوونې کوي. | –زده‌کوونکي دې حدیث په یــادو زده کړي، او په یونوې عنوان ســره دې یوه لنډه مقاله ولیکي. |

**لسم لوست**:

**عنوان:** د ستاينې وړ غښتلتيا .

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵دقيقې)

**موخې** : زده‌کوونکي بايد :

۱– د حديث متن، ژباړه، حکمت، اوګټې په صحيح ډول ولوستلای شي .

۲– حقيقي او ستايل شوی قوت وپيژني.

۳– د قهر پر وخت له زغم څخه کار اخيستل په خپل ژوند کې پلي کړي .

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱_د رواي پيژندنه:**

دراوي په هکله معلومات په څلورم لوست کې تير شوی دی.

**۲– د حديث د مطلب په اړه توضيحات:**

پهلوان هغه چاته ويل کيږي چې خپل سيال راځملوي، خو پيغمبرﷺ پهلواني په بل څه کې بولي هغه دا چې د غضب پر وخت پر ځان کنترول حاصلول حقيقي پهلواني ده . په کار ده چې يو مؤمن د قهر او غضب پر وخت له زغم او حوصلې څخه کار واخلي او د غضب اور به د حوصلې او زغم پر اوبو ووژني . ځکه چې غضب له شيطان څخه وي او مسلمان بايد ځان پـــر شيطان باندې مسلط کړي، ترڅو له شر څخه يې په امن کې شي.

غضب ډيرې بدې پايلې لري،ايمان فاسدوي اوانسان قتل، سپکو ويناوو، فسق او کفر ته هڅوي رسوي کله داسې هم کيـــږي چې دغضب پر وخت انسان خپله ښځه طلاقوي خو وروسته بيا په هرڅه پښيمانه وي.

**۳_ دقوت اونفس ډولونه:**

غښتلتيا دوه ډوله ده: يو ظاهري قوت او بل باطني قوت: په دې حديث شريف کې پيغمبرﷺ باطني قوت چې د غوســـې د جوش په وخت کې په نفس کنترول لرل دي، ستايلی دی او مسلمانان يې د همدې قوت پيداکولو ته هڅولي دي.

نفس په قرآن کريم کې په درې ډوله ښودلی شوی دی.

أ_ نفس امارة بالسوء: دا هغه نفس دی چې د ګناه او معاصيو په کولو د هوا او هوس اتباع وربانديې زياتيږي او همدغه نفس امارة بالسوء په انسان کې جاهلي او حيواني غوسه پيدا کوي په حديث کې همدغه نفس باندې غالبه کېدل مراد دي.

ب_ نفس لوامة: دا هغه نفس دی چې خير او شر دواړه پکې وي، لکه چې کله د شر کار وکړي، نو بيا توبه کـــوي او دی ډول نفس ته لوامه وايي د دې لپاره چې خپل صاحب په ګناه کولو ملامتوي.

ج_ نفس مطمئنة: دا هغه نفس دی چې خير او حسنات ښه ګڼي او سيئات بد ګڼي.

د عقيدة الطحاويه شارح وايي:

نفس لومړی امارة بالسوء وي، چې ايمان پکې پيدا شي، نو بيا لوامة جوړ شي او چې ايمان پکې قوي شي، نو بيا مطمئنه جوړ شي.

**۴_د غضب درملنه:**

غضب يو ډول خطرناکه او زهرجنه ناروغي ده او ضروري ده چې سمه درملنه يې وشي، نو لازم ده چې د غضب د مخنيـــوي لپاره لاندې خبرو ته پام شو:

۱– د غضب پر وخت له شیطان څخه پناه غوښتنه اود اعوذبالله من الشیطان الرجیم لوستل.
۲– د عفوې، حلم او د زغم فضیلت په نظر کې نیول.
۳– د الله ﷻ د لویی او قدرت یادونه داسې چې الله ﷻ له ما څخه ډېر زورور دی، داسې نه چې ماته زما زور د بـــې ځایـــه کارولو په وجه سزا رانکړي.
۴– د غضب بد عواقب او نتایجو ته فکر کول چې دښمني، غچ اخیستل او له ډول ډول ستونزو سره مخامخ کیدل دي.
۵– د غضب پر وخت باید خپل ځای ته تغییر ورکړئ، غوره دا ده چې اودس وکړئ، یا که چیرې ناست وئ باید ولاړ شـــئ او که ولاړ وئ باید کینئ او یا ډډه ووهئ.

**۵_د کلماتو معنا:**

۱_ غضب: یو حرارت دی چې د زړه د وینو له جوش څخه په انسان کې راپیدا کېږي.
۲– الشدید: د فعیل وزن دی، ډېر سخت ډېر قوي، شجاع، مضبوط معنا لري، چې دلته ورڅخه پهلوان مراد دی.
۳– الصرعة: پهلوان ته هم ویل کیږي، او د پهلوانی لوبې ته هم ویل کیږي، چې دلته ورڅخه پهلواني مراد ده.
۴– غچ: انتقام او بدل.

**۵_د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**٦_د زده کړې مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د حدیثو د متونو او شروحو کتابونه، تخته اوتباشیر.

**دلوست بهیر :**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی د سلام اچولو، حاضري اخیستلو او د کورنی دنـــدې له کتلو وروسته له زده‌کوونکو څخه پوښته کوي:<br>–څوک د مخکیني لوست حدیث په یادو ویلای شي؟<br>–څوک د تیر لوست ګټې په خلاصه ډول ویلای شي؟<br>دځواب له اورېدلو وروسته د نوي لوست عنوان، د حدیث متن او د لوست عناصر پر تخته لیکي او د یـــوې پوښـــتنې پـــه کولـــو ســـره زده‌کوونکي نوي لوست ته هڅوي . | _زده‌کوونکي دې په ډلـــه ییـــز ډول دسلام ځواب ووایي.<br>ـــ زده‌کوونکي دې په نوبت ســـره د ښوونکي سوالونوته ځوابونه و رکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ـــ محترم ښوونکی لومړی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست پـــه پټه خوله له ځانه سره ولولي .<br>ـــ بیا محترم ښوونکی پر یوه زده‌کوونکي د حدیث شـــریف مـــتن، د حدیث ژباړه،حکمت اوګټې لولي.<br>ـــ محترم ښوونکی د حدیث موضوع تشریح کوي او د لوست هـــره ګټه زده‌کوونکو ته روښانه کوي او زده‌کوونکي دې ته هڅوي تر څو د لوست محتویات په خپل ژوند کې عملي کړي .<br>ـــ د لوست فعالیت په ګروپي شکل سرته رسوي .<br>ـــ په پای کې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکـــو کـــې خلاصـــه او | _زده‌کوونکي دې په غور سره لوست په پټه سره ولولي او ستونزې دې لـــه ځانه سره یادداشت کړي.<br>_ زده‌کوونکي دې دلوست شـــرحي اوتوضیح ته غوږ کیږدي.<br>_ زده‌کوونکي دې د لوست فعالیـــت په حل کولوکې فعاله ونډه واخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | زده‌کوونکو ته بیانوي. | |
| | **د لوست لنډیز:**<br>– قوي او پهلوان هغه څوک دی چې حوصله ولري . د قهرمانۍ او پهلوانۍ لقب له هغه چا سره ښه ښکاري چې د غوسې په وخت پر خپل ځان کنترول او واک ولري . دا حدیث شریف یواځې پر خپل ځان تطبیق نشي، بلکې لازمه ده چې دا پیغام نورو خلکو ته هم ورسوو . په صبر او حوصلې سره د انسان حقوق له منځه نه ځي، بلکې د حوصلې له برکته انسان ته ټولې لارې خلاصې وي او کولای شي په ژور فکر، دقت او تدبر سره داسې لار غوره کړي چې د ټولو پکې خیر وي. | ـ زده کوونکي دې دلوست لنډیزتـــه غوږ کیږدي. |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په کتبې ډول ارزوي . | ـ زده‌کوونکي دې دحـــدیث خـــالي ځایونه ډک کړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دنـــدې پـــه اړونـــد مناســـبې لارښوونې وکړي. | – زده‌کوونکي دې حدیث شریف حفظ اوپه اړه دې یوه مقاله ولیکئ. |

**يوولسم لوست**:

**عنوان:** بدخويونه.

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱ــ حديث شريف صحيح ولوستلای شي.

۲ــ د حديث شريف معنٰا، حکمت او ګټې و پيژني.

۴- دبد ګمانی،جاسوسی بدو عواقبو ته پام وکړي .

۵ــ پر مسلمانانو نيک ګمانه واوسي او له بد ګومانيو څخه ځانونه وژغوري .

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱ــ د راوي پيژندنه:**

دراوي پوره پيژندنه په څلورم لوست کې تيره شوې ده.

**۲ــ بدګماني او حکم يې:**

انسان د الله تعالی ډېر ګران او د قدر وړ مخلوق دی د هغه عزت ساتنې لپاره يې د اسلام دين، چې د هر اړخــه د انــساني عزت ساتونکی دی رالیږلی دی له دې امله ټول هغه څه چې د انسان د بې عزتی او د هغه د سپکاوی لامل ګرځي، په قــرآن کريم او نبوي سنتو کې ورڅخه په کلکه منعه راغلې ده، يو له هغو څخه د پيغمبرﷺ دغه حديث شريف دی.

الله تعالی خپل مؤمن بنده ګان پر مسلمانانو باندې له بدګوماني څخه منع کړي دي ځکه چې مسلمان باندې بد ګومان کول ګناه ده او يو د بل د جاسوسي کولو څخه يې منع کړي دي، الله(ج)فرمايلي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا). [الحجرات : ۱۲]

ژباړه:ای مؤمنانو! ځانونه وساتی له ډیرو بدګومانيو څخه، بيشکه ځينې بدګوماني ګناه وي،او مه لټوئ د خلکو عيبونه .

دحارثه بن نعمانؓ څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي، درې څيزونه دې چې زما په امت کې به وي: فال نيــول، کينه کول او بدګوماني . يو سړي وويل: يا رسول الله !ورڅخه د خلاصون چاره څه ده؟

رسول الله وفرمايل: کله چې دې په زړه کې چا ته کينه پيدا شوه، له الله تعالی څخه بښنه وغــواړه اوکلــه چــې دې پرچــا بدګوماني پيدا شوه، نو پرې مه کلکېږه اوکله چې دې نيک فال ونيو، نو بيا يې کوه.

**۳ــد بد ګوماني اسباب :**

۱ – بد نيت: هر کله چې د يو انسان کړه وړه خراب وي د هغه په نيت کې هم خرابي رامنځ ته کيږي او نيت يې خرابيږي او تل بد ګومانه وي .

۲ – پر خلکو باندې د حکم کولو د صحيح لارې سره نا اشنايي : ځکه چې پر پاکو خلکو حکم کول د هغوی په ظاهري کړنه باندې کيږي او د هغوی پټ احوال الله جل جلاله ته سپارل پکار دي .

۳ – د نفسي خواهشاتو پيروي: کله چې انسان د نفسي خواهشاتو پيروي غوره کړي نو هرو مرو به د بد ګومانيو په افتونو اخته کيږي .

۴ – بې ځايه شکوک او شبهات او د مشکوکو ځايونو زياتې پلټنې، لکه چې کوم چا ته د چا په هکله کوم شک او شبهه ورپيوزي او پر هغه بې ځايه شکونو پلټنې کول شروع کړي .

۵ – ناسم مجلسونه: لکه د دوو کسانو په خپلو منځوکې د دریم ګړي څخه جلا پټې خبرې چې داسې مجلس دریم ګړی بد گومانه کوي .

٦ – د خلکو کړه وړه او ویناوې په خطا تعبیرول .

**۴_ د بد ګمانۍ علاج :**

۱ – پر پاکو مسلمانانو همیشه نیک گومان کول.

۲ – د مسلمانانو ویناوې او کړنې په ښه شان باندې حمل کول او د هغوی غوره تعبیر لټول .

۳ – که چیرې د مسلمان څخه کومه وینا صادره شي او هغه ښه او بد اړخونه او معناګانې ولري باید د هغه له وینا څخه ښه معنا واخیستل شي او له بد اړخ څخه یې ځان وژغورل شي .

حضرت عمرﷺ وایي: د مسلمان ورور په خبره دې د خیر ګومان کوه او د خیر محمل ورته ګوره.

۴ – پر مسلمانانو پرده اچول او پر هغوی له بې ځایه شکونو او شبهاتو څخه ځان ژغورل او د هغوی د عزت له پایمالولو او عیبونو د لټولو څخه ډډه کول .

۵ – بې دلیله پر چا د شک او بد ګمانۍ څخه ځان ساتل او تر هغې پورې چې حقیقت د روڼ سهار په څیر نه وي ښکاره شوی، هر شک له نظره غورځول .

٦ – د نورو خلکو لپاره همیش د عذرونو د لټون هڅه، که چیرې له کوم شخص څخه کومه وینا او یا کوم ناوړه کار تر سره شي باید هڅه وشي چې هغه معذور وګڼل شي .

**۵_دبدګومانۍ زیانونه:**

بدګوماني ډېر فردي او ټولنیز زیانونه لري چې له امله یې د انسانانوتر منځ د مرستی او همکاری روابط له منځه ځی.

بدګمانی کله ناکله د تهمت پیل وي چې شخړی اوحتې مرګونه زیږوي.

بدګومانی د خلکوترمنځ بې اعتمادي رامنځ ته کوي او یو پر بل د اعتماد فضا ته زیان رسوي.

**٦_د کلماتو معنا:**

۱– ظن: هغه تهمت ته ویل کېږي چې په زړه کې پیدا کېږي او هېڅ دلیل ورباندې نه وي.

۲– اکذب الحدیث: تر ټولو لوېه درواغجنه خبره.

۳– تحسس: د یو شي پسې کېدل او د هغه پلټنه کول .

۴– تجسس:د یو چا دعیبونو،اونقصانونوپه پټه پلټنه او یا د خلکو د دروازو ترشا غوږ نیول.

بل قول دا دی چې تحسس اوتجسس دواړه مترادفې کلمې دي.بل قول دا دی چې د خیر پلټنې ته تحسس وایـــي او د شــــر پلټنې ته تجسس وایي.

۵– تناجش: د یو بیګانه کس له خوا د نورو خلکو د تېرولو په غرض مبیعه په اوچت نرخ سره بیه کولو ته تناجش یا (بـــازار تیزی) وایي.

**۷_د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**۸_د زده کړې مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د حدیثو دمتونو او شروحو کتابونه، تخته اوتباشیر.

دلوست بهير :

| دزده‌کوونکو فعالیت | د ښوونکي فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| ـزده‌کوونکي دې په ګروپـــي ډول دسلام ځواب ووايي.<br>ــ زده‌کوونکي دې په نوبت ســـره دلوست پراګرافونه و لولي.<br>ــ زده‌کوونکي په خورا ادب ســـره د(ظن) په هکله له خپل ښـــوونکي سره په مباحثه کې برخه اخلي. | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی وروسته د سلام لـــه اچولو،حاضـــرۍ اخیـــستلو،او د کورنۍ دندې له کتلو د ظن په باره کې له یوه زده‌کوونکي سره مباحثـــه کوي . د نورو زده‌کوونکو سره په تبصرې کولو زده‌کـــوونکي نـــوي لوست ته هڅوي او د نوي لوست عنوان، د حديث متن، او د لوســـت عناصر پر تخته ليکي او نوی لوست شروع کوي . | ۵ دقیقې |
| ـزده‌کوونکي دې په غـــور ســـره لوست په پټه ولولي او ستونزې دې له ځانه سره ياد داشت کړي .<br>ـ زده کوونکي دې دلوست شرحي اوتوضیح ته غوږ کيږدي.<br>ـ زده‌کـــوونکي دې پـــه خپلـــو منځوکې دبدګمانۍ دزيانونوپه هکله ســـره مباحثـــه او ورڅخـــه دې د خلاصون لارې چارې په ګوته کړي اوهم دې د ښوونکي په مرســـته د نجش ((مزايدې بيعه)) تمثيل کړي. | **د لوست وړاندې کول:**<br>ـ محترم ښوونکی لومړی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست پـــه پټه خو له ځانه سره ولولي .<br>وروسته د حديث شريف مـــتن لـــولي او د لوســـت پراګرافونـــه پـــه زده‌کوونکو تکراروي او د هغوی تېروتنې اصلاح کوي.<br>ــ بیاښوونکی پر یوه زده‌کوونکي د حديث شريف متن د حديث ژباړه لولي .په بل زده‌کوونکي د حديث شريف حکمت اوګټې لولي.<br>ـ محترم ښوونکی د حديث موضوع تشريح کوي او د لوست هره ګټه زده‌کوونکو ته روښانه کوي او زده‌کوونکي دې ته هڅـــوي ترڅـــو د لوست محتويات په خپل ژوند کې عملي کړي.<br>ـ محترم ښوونکی د لوست فعاليتونه په زده‌کوونکو باندې په ګروپـــي شکل ترسره کوي .<br>ـپه پای کې د حديث شريف مفهوم په څـــو ټکـــو کـــې خلاصـــه او زده‌کوونکو ته يې بيانوي. | ۲۵ دقیقې |
| ـ زده کوونکي دې دلوست لنډيزته غوږ کيږدي. | **د لوست لنډيز:**<br>– بې له کوم دليله پر چا بدګومانه کېدل حرام دي،ځکه چې په اصـــل کې هر انسان عادل او پاک دی او هېڅوک دا حق نه لري چې په خپلو اټکلونو، تشو ګومانونو او بې ځايه آوازو د چا په حـــق کـــې د بـــدۍ قضاوت او فيصله و کړي.<br>– تجسس او د نورو د ښو او بدو پلټنـــه خورابـــده کړنـــه ده چـــې ډيرضررونه لري او له کبله يې د پاک لمنو په لمن دتهمت تور داغونـــه لګيږي .<br>– تناجش حرام کار دی: هغه داسې وي چې د بازار د جنـــسونو د يـــو جنس د قېمت د اوچتولو په غرض يو کس د بل کس سره پدې غـــرض اتفاق وکړي چې د پېرودونکي په حضور کې به يو کس د پېرودونکـــي | |

| | | |
|---|---|---|
| | او بل د پلورونکي نقش اداء کړي، او پیرودونکی به د دې لپاره چې نورو ته دوکه ورکړي یو جنس په ډېر اوچت قېمت ورڅخه واخلي، چې دا کار له یوه پلوه دوکه ده او له بل پلوه د یو څو دوکه مارو په وسیله د اجناسو د قېمتونو لوړول ټولې ټولنې ته ضرر رسول دي. | |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي ډول ارزوي او د لوست پر پوهېدلو ځان ډاډ منوي. | ـ زده‌کوونکي دې په خورا ادب سره سوالونوته شفاهی ځوابونه ورکړي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې وکړي. | ــ زده‌کوونکي دې حدیث شریف حفظ کړي او دبد خوی په اړه دې یوه مقاله وليکي. |

**دولسم لوست:**

**عنوان:** بدخويونه

**وخت:** يو درسي ساعت **(۴۵دقيقې)**

**موخې:** زده کوونکي بايد:

۱ـ د کينې او اړيکو پرېکولو پر حرمت پوه شي.

۲ـ د الله تعالی د بندګۍ اود اسلامي اخوت پر بنياد ولاړ ژوند تېرولو پراهميت پوه شي اوپه خپل ژوندکې يې پلي کړي.

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱ـ د( الفلق) په سورت کې الله ﷻ موږ ته د ټولو مخلوقاتو له شر څخه د پناه غوښتلو امرکړی او په همدې سورت کې يـې بيا د ساحر او حاسد له شر څخه هم د پنا غوښتلو امر کړی دی دغه تخصيص بعدالتعميم دا څرګنـدوي چـې د سـحر او حسد شرخورا لوی دی، ځکه چې ضرر يې انسان ته له داسې لورې رسېږي چې ګومان پرې نه کېږي.

۲ـ د حسد د دفع بهترينه وسيله د (الفلق )سورت لوستل دي.

۳ـ د ابليس عليه اللعنة کيسه ټوله د سره تر پايه حسد و هغه اکرام او اعزاز چې پاک الله آدم عليه السلام ته ورکړی و ابليس پرې حسد وکړ چې په پای کې ورټل شو.

**د کلماتو معنا:**

۴ـ البغض: له يو شي څخه د نفس نفرت او کرکې ته بغض ويلی کېږي او د محبت ضد دی.

۵ـ التدابر: هجران ته ويلي کېږي او له دې نه اخيستلی شوی چې يو څوک خپل ملګري ته شا واړوي.

٦ـ کونوا عبادالله اخوانا: معنٰی دا چې د ورونو په شان معامله کوئ او په دوستۍ، مهربانۍ، شفقت او معاونت کـې ژونـد کوئ.

**د تدريس طريقې:** توضيحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**د زده کړې مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د حديثو د متونو او شروحو کتابونه، تخته او تباشير.

**دلوست بهير :**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | دزده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی وروسته دسلام اچولو،حاضرۍ اخيـستلو او کـورنۍ دندې له کتلو د شاګردانو څخه پوښتنه کوي، څوک تير شوي لوست دحديث متن په يادو ويلی شي؟<br>– له دې وروسته د نوي لوست عناصر پر تخته ليکي او د يوې پوښتنې په کولو سره زده‌کوونکي نوي لوست ته هڅوي . | ـ زده‌کوونکي دې په ګروپي ډول د سلام ځواب وايي.<br>ـ زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دنـدې ښوونکي ته سپاري.<br>ـ زده‌کوونکي دې په نوبت سره د ښوونکي سوالونو ته ځوابونه و رکړي. |
| ۲۵ دقيقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>ـ محترم ښوونکی لومړی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست پـه پټه خوله ولولي . | ـزده‌کوونکي دې پـه غـور سـره لوست په پټه خوله ولولي اوستونزې دې له ځانه سره يادداشت کړي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ـــ ښیا ښوونکی پر یو،یا څو زده کوونکو لوست لولي.<br>ـ محترم ښوونکی د حدیث موضوع تشریح کوي،او د لوست هره ګټه زده کوونکو ته روښانه کوي او زده کوونکي دې ته هڅوي ترڅو د لوست محتویات په خپل ژوند کې عملي کړي .<br>ـد لوست فعالیت په ګروپي شکل سرته رسوي .<br>ـآخر کې دې د حدیث شریف مفهوم په څو ټکو کې خلاصه او زده کوونکو ته یې بیانوي. | ـ زده کوونکي دې د لوست شرحي او توضیح ته غوږ کیږدي.<br>ـ ټول زده کوونکي دې د لوست فعالیت په حل کولو کې فعاله ونډه واخلي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>ـ یو له بل سره کینه او حسد ساتل جواز نه لري کینه او بغض حرام اوخورا بدکار دی.<br>کینه او بغض دوستي له منځه وړي، د خلکو تر منځ اړیکې پرې کوي، د جګړو او اختلافاتو لامل ګرځي.<br>– اسلام سوله ییز ژوند او د ټولنیزو اړیکو ټینګښت ته ځانګړې پاملرنه کوي له همدې امله د اړیکو پرې کول او دښمني کول د اسلام له روحیې سره مخالف کارونه دي او د اړیکو پرې کول او یو له بل سره دښمني کول حرام دي .<br>– انسانان باید عاجز او متواضع وي او دا سوچ وکړي چې که هر څومره د قدرت، لوړ مقام او ډېرې پانګې خاوند وي خو بیا هم د الله تعالی عاجز بنده دی، نو په کار نده چې د الله تعالی له حکمونو څخه سرغړونه وشي .<br>– لازمه ده چې مسلمانان په خپلو منځوکې د ورورولۍ اړیکې ټینګې او را ژوندۍ کړي. | ـ زده کوونکي دې د لوست لنډیزته غوږ کیږدي. |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده کوونکي په کتبي او شفاهي ډول ارزوي او د لوست پر پوهېدلو ځان ډاډ منوي. | ـ زده کوونکي په نوبت سره خالي ځایونه د تختې پرسر ډکوی،اونورو سوالونوته شفاهی ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې وکړي. | – زده کوونکي د حدیث په ګوته شوي برخه په یادو یادوي،او په اړونده موضوع کې یوه مقاله لیکی . |

**دیارلسم لوست**:

**عنوان:** نېشه یي توکي

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ــ د حدیث شریف معنا، راوي،د حدیث ژباړه حکمت اوګټې وپېژنې .

۲ــ د نیشه یي توکو ډولونه وپیژني.

۳ــ د نیشه یي توکو زیانونوته متوجه شي.

۴ــ د نیشه یي توکو د استعمال څخه ځانونه وژغوري،او ورڅخه کرکه،او نفرت غوره کړي .

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱ــ د عقل ساتنه:**

عقل د الله ﷻ خورا لوی نعمت دی او په اسلام کې داسې ارزښتناکه حس دی چې له کبله یې انسانان پرنـــورو مخلوقـــاتو دکرامت او برتری څخه برخه مند دی دا چې عقل په اسلام کې لوی اهمیت لري، ځکه یې دعقل په ساتنه اوحفاظت بانـــدې زیات ټینګارکړی دی اوټول هغه څه یې حرام کړی چې عقل ته زیان رسوي،که هغه خواړه وی اویامایعات وي.

**۲ــ د نیشه یي توکو استعمال اوتجارت یې:**

ټول هغه توکي چې په عقل کې نقصان راولي اویا یې زایلوي د هغې استعمال حرام دی . توپیر نه کوي که هغه د مایعاتو پـــه شکل کې وي، لکه شراب یا نورسستوونکی اومستوونکی مایعات او یا دا چې د تابلیتونو او پیچکاریو وهلو په شکل کې وي او یا دا چې د لوګې په شکل کې وي لکه د چرسو د لوګي تیرول .

د نیشه یي توکو استعمال حرام دی په حدیث شریف کې راځي:**((**عن ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صـــلى الله عليه وسلم «لَعَنَ اللَّهُ الْخَمْرَ وَشَارِبَهَا وَسَاقِيَهَا وَبَائِعَهَا وَمُبْتَاعَهَا وَعَاصِرَهَا وَمُعْتَصِرَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ». سنن أبي داود

**ژباړه:**د عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبر علیه السلام فرمایلی دي:الله ﷻ پرشرابو،د شراب پرڅښوونکي، د شرابو پـــر خړوبوونکي،د شرابو پر خرڅوونکي، د شرابو پر اخیستونکي، د شرابو پر جوړوونکي، د شرابو پر زبیښوونکي، د شـــرابو د زبیښلو په غوښتونکي، دشرابو په وړونکی او پر هغه چا چې شراب ورته وروړل کیږي لعنت ویلی دی.

په بل حدیث شریف کې راغلي دي: عن ابن عَبَّاسٍ رضي الله عنهما « إِنَّ الَّذِى حَرَّمَ شُرْبَهَا حَرَّمَ بَيْعَهَا ». صحيح مسلم

ژباړه: له حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې پیغمبرﷺ ویلي دي:بیشکه هغه ذات چې د کوم شي څـــښل حرام کړي دي دهغه پلورل یې هم حرام کړي دي.

همدارازپه بل حدیث شریف کې راغلي ((عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم « كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْـــرٌ وَكُـــلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ وَمَن مَاتَ وَ هُوَ يَشرَبُ الْخَمْرَ يُدمِنُهَا لَمْ يَشرَبْهَا فِى الآخِرَةِ ». سنن أبي داود

**ژباړه:** له عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبرعلیه السلام فرمایلي دي. هر نېشه کوونکی شی شراب دی او هـــر نېـــشه کوونکی شی حرام دی او څوک چې مړ شي او په دنیا کې یې شراب څښلي وي په آخرت کې به د (جنت) له شرابو څخـــه محروم وي.

هر مسکر حرام دی، که له انګورو څخه جوړ شوی وي یا له اوربشو څخه او یا له نورو شیانو څخه، خو شرعي حد یوازې د شرابو په څښلوسره ثابتیږي . د شرابو د څښونکي لپاره شرعي حد اتیا (۸۰) درې دي .

**۳ــ د نیشه یي توکو زیانونه:**

نیشه یي توکي ډېر دیني فردي اجتماعي او تربیوي زیانونه لري.

**ا ــ دیني زیانونه**: د نیشه یي شخص دخولی له بدبویۍ څخه لمونځ کوونکي او ملایکي په تکلیف کی وي، همدا راز نیشه یي شخص نه غواړي چې په سفر او ټولنو کې له نیکانو سره ملتیا وکړي نو له همدی امله د نیکانو د مجلسونو او خیــر څخه بې برخې وي .

**ب – فردي زیانونه:** نیشه یي توکې دانسان مالي،جسمي،عقلي، ټول طاقتونه کمزوري کوي،یایي له منځه وړي.

**ج ــ ټولنیز زیانونه:** د نیشه یي شخص د خولی له بدبویۍ څخه د عامه مجلسونوخلک متضرره کیږي، لکه: په د فترونوکې، مسجدونوکې، له سفري وسایلو څخه د ګټې اخیستلو پر وخت لکه موټر، جازونه، یا هغه درانده مصارف او خدمتونـــه چـــې دولت یي په نیشه یي توکو روږدوکسانو لپاره وړاندې کوي.

**د ــ تربیوي زیانونه:** په نیشه یي توکو روږدي کسان زیاتره نیشه یي توکي د خپلو ماشومانو په مخکې استعمالوي چې دا کار د هغوی په تربیې باندې مستقیما منفي اغیزه اچوي اوهغوی هم ډیرژر داسې کړنې ترسره کوي.

**۴_د کلماتو معنا:**

۱_ مسکر: مستوونکی او د عقل زایلوونکی شیان

**۵_ د تدریس طریقې:**

توضیحي، مباحثوي، پوښتنې او ځوابونه.

**٦_د زده کړې مرستندویه توکي:**

درسي کتاب، د حدیثو د متونو او شروحو کتابونه، تخته او تباشیر.

**دلوست بهیر :**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | دزده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>محترم ښوونکی ورروسته د سلام اچولو،حاضري اخیستلو،او د کورنۍ دندې له کتلو د زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي، څوک د مخکینـــي لوست لنډیز ویلی شي؟<br>د سم ځواب له اورېدلوڅخه ورروسته د نوي لوست عنوان، دحدیث متن، او دلوست عناصر پر تخته لیکي او د یوې پوښتنې په کولو سره زده‌کوونکي نوي لوست ته هڅوي. | ـ زده‌کوونکي دې په ګروپــي ډول د سلام ځواب ووایي.<br>ــ زده‌کوونکي خپلې کورنۍ دنـــدې ښوونکي ته سپاري.<br>ــ زده‌کوونکي دې په نوبت ســـره د ښوونکي سوالونوته ځوابونه و رکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **دلوست وړاندې کول:**<br>ـ محترم ښوونکی لومړی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه خوله هریو له ځانه سره ولولي .<br>ــ بیاښوونکی پر یو زده‌کوونکي د حدیث شریف متن د حدیث ژباړه لولي .په بل زده‌کوونکي د حدیث شریف حکمت اوګټې لولي.<br>ـ محترم ښوونکی د حدیث موضوع تشریح کوي،او د لوست هره ګټه زده‌کوونکو ته روښانه کوي او زده‌کـــوونکي دې تـــه هڅـــوي | ـ زده‌کوونکي دې په غور سره لوست په پټه ولولي او ستونزې دې له ځانـــه سره یادداشت کړي.<br>ـ زده‌کوونکي دې د لوست شرحې او توضیح ته غوږکیږدي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ترڅودلوست محتویات په خپل ژوند کې عملي کړي.<br>_آخر کې د حدیث شریف مفهوم په څـــو ټکـــو کـــې خلاصـــه او زده‌کوونکو ته یې بیانوي اوهم د زده‌کوونکو مشکلاتو ته ځوابونـــه وایي. | |
| | **د لوست لنډیز:**<br>– نیشه یي توکي هغه توکي دي چې ډیره کاورنه یې د مرکزي اعصابو د فعالیت سیستم ته تغیر ورکوي او د بدني او روحي روږدوالي لامل ګرځي.<br>_نیشه یي توکې په دوه ډوله دی: یو طبیعي لکه اپین،چـــرس.دویـــم مصنوعی اوکیمیاوي: لکه هیرویین، مورفین، کوکـــائین، کـــودین او داسې نور.<br>– د نیشه یي توکو استعمال ډیر جسمي او روحي زیانونه لري د مثال په توګه یې لاندې بیانوو: د بدن د دفاعي سیستم کمزوري کول، د مرکزي اعصابو د فعالیت سستول، د زړه د ټکان زیاتوالی، د ستوني سرطان، د لیدکمزوري کول، د وینې د فشار لوړول، په وینه کې د غوړوالي زیاتوالی، د زړه دربدل،د تنفسي سیستم ګډوډول،روحي ګډوډي لکه (خفګان، اضطراب، ګوښه توب، په ځان باندې بې باوري او ناهیلې کیدل ). | _ زده کوونکي دې دلوست لنډیزتـــه غوږکیږدي. |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي اوکتبې ډول ارزوي. | _ زده‌کوونکي دې په خورا ادب سره سوالونو ته شفاهي ځوابونه ورکړي،او هم دې د حدیث نیمګړی عبارات پوره کړي. |
| | **کورنی دنده:**<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنی دندې په اړه مناســـبې لارښـــوونې کوي. | – زده‌کوونکي دې حدیث شریف لـــه معنی سره حفظ کړي،او هم دې د نیشه یي توکو د زیانونو پـــه اړه یوه مقاله ولیکي. |

## لومړی لوست:

**سرلیک:** ښکاره بلنه

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱ــ پر دې وپوهیږي چې بلنه (پټه وي که ښکاره) باید له دوستانو څخه پیل شي.

۲ــ د صفا غونډۍ پر سر له خپلو دوستانو سره د پیغمبرﷺ د خبرو له جریان څخه خبرشي.

۳– پوه شي چې د اسلامي دعوت اصلاحي کړنلارې باید د وخت د شرایطو او حالاتو سره سمون ولري.

۴ــ د لوست په ګټو پوه شي ترڅو يې په ژوند کې عملي کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**ابو طالب** د عبدالمطلب زوی او د پیغمبرﷺ تره و. پیغمبر ﷺ یې په حق کې ویلي دي: ژباړه: ((تر څو چې ابو طالب ژوندی و د قریشو هیڅ یو کس هم زما د ځورولو جرآت نه درلود له یې دا وینا چې: په دوزخیانو کې به اسانه عذاب د ابوطالب وي.

**د صفا غونډۍ:** اوس هغه په مسجد الحرام کې دننه ده، له بهر څخه نه لیدله کیږي.

**د کلماتو معنا:**

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** :<br>محترم ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو، له سلام، حمد او ثنا څخه وروسته زده‌کوونکو ته ځان معرفي کوي. اتم ټولګي ته د هغوی دبري او نوي درسي کال مبارکي وايي، د حاضرۍ له اخیستلوسره سم به زده‌کوونکي هم ځان معرفي کړي. د دې تر څنګ هغوی ته د درس ویلو ګټې او د نه ویلو زیان ور په ګوته کوي.<br>زده‌کوونکو ته یادونه کوي چې په اووم ټولګي کې مو د سیرت النبي په مضمون کې د سیرت دعلم له تعریف او ارزښت څخه نیولې تر پټې بلنې پورې د موضوعاتو په هکله هر اړخیز معلومات تر لاسه کړل. په دې ټولګي کې به د پیغمبر علیه السلام له ښکاره بلنې څخه نیولې د عقبې تر دویم بیعت پورې موضوعګانې تاسو ته وړاندې شي په همدې وینا سره د نوي لوست سرلیک، تاریخ او ورځ پر تخته لیکي او په لوست پیل کوي | زده‌کوونکي باید د ښوونکي له راتللو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډیر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووايي. له هغه څخه دې مننه وکړي او بیا دې یویو ځان معرفي کړي |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله جانبي سرلیکونه پرتخته لیکي .<br>ښوونکی د نورو په نمایندګۍ په یوه زده‌کوونکي د صفا غونډۍ تر سرلیک لاندې عبارت لولي. په بل زده‌کوونکي له اسلامي دعوت سره د | زده‌کوونکي دلوست متن په ورو لولي د زده‌کوونکو له ډلې څخه دوه درې تنه یې د کتاب له مخې اړوند لوست په لوړ اواز لولي نور دې خپلو کتابونو ته ځیر شي. |

| | | |
|---|---|---|
| | قریشو د دښمنۍ تر سرلیک لاندې مطلب عبارت لولي او پر بل زده کوونکي د لوست ترپایه پورې عبارت وایي، د تیروتنو له اصلاح وروسته يې په خورا ساده او آسانو الفاظو سره د هر مطلب مفهوم په خپله تشریح کوي.<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنویو کلماتو اومصطلحاتو په هکله څرګندونې کوي.<br>ښوونکی په لوست کې ورکړی شوی فعالیت د غوښتنې سره سم زده کوونکو سره ترسره کوي.<br>په پای کې د لوست مهم ټکي د درس د لنډیز په شکل کې بیانوي. | د ښوونکي تشریح ته دې ځیر شي<br><br>زده کوونکي دې ځوابونه ووایي او د لوست مهم ټکي دې په کتابچو کې ولیکي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>څرنګه چې له یوې خوا د مسلمانانو شمیره زیاته شوې وه او له بل پلوه د دعوت خبرې په ټوله مکه کې خپرې شوې وې تر ټولو مهم دا چې د الله تعالی اراده داسې وه چې دعوت دې علني شي د (و انذر ...) الآیة – د آیت په نزول سره يې پیغمبرﷺ ته دا وویل چې نږدې خپلوان دې اسلام ته رادعوت کړه. هماغه و چې پیغمبرﷺ خپل نږدې دوستان راوبلل او اسلام يې ورته وړاندې کړ.<br>د دوستانو له ډلې څخه يې ابوطالب راپورته شو، که څه هم چې ایمان يې را نه وړ خو د خپل پریکنډه دریغ په ښکاره کولو سره يې د دعوت څخه نه یوازې خپل پوره او هر اړخیز ملاتړ څرګند کړ، بلکې پیغمبرﷺ يې د دعوت پرمخ بیولو ته وهڅاو. بله ورځ پیغمبرﷺ د صفا غونډۍ ته پورته شو او په لوړ اواز يې نارې کړې ((یا صباحاهُ)) خلک د خپل دود له مخې ورغلل پیغمبرﷺ لومړی هغوی په خپلې ریښتینولۍ ګواهان وګرځول او بیا يې ورته د اسلام په لور بلنه ورکړه.<br>ابولهب پاڅیده او ورته يې وویل: ((تباً لک الهذا جمعتنا)) هلاک اوبرباد شې، ایا تا موږ د همدې لپاره راغونډ کړي یو. هماغه و چې الله تعالی د (المسد) سورت له نزول سره د هلاکت مستحق په ګوته کړ چې په خپله ابو لهب دی | – زده کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږونیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی زده کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول ارزوي او د لوست پر موخو د زده کوونکو له پوهیدلو څخه ډاډه کوي. | _زده کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ـــ زده کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**دویم لوست**:

**سرلیک:** د حق له اوریدلو څخه د مکې مکرمې د زائرینو منع کول

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱_له ولید بن مغیرة سره د قریشو له مشورې خبر شي.

۲_ پیغمبرﷺ ته د ساحر په ویلو د قریشو د اتفاق په اړه معلومات تر لاسه کړي.

۳_ د مشرکینو د جوړې شوې دسیسې د عملي کولو پر پلان او پر ضد یې د الله تعالی په کړنې وپوهیږي.

۴- د ې خبرې ته په ذهن کې ځای ورکړي چې د منکرینو د دسایسو سره سره بیا هم د حق دعوت خپل منزل ته رسیږي .

۵_ د لوست پر ګټو پوه شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**ولید بن مغیرة:** د مخزوم له قبیلې څخه و چې د خالد رضي الله عنه پلار او د ابو جهل تره و.

ولید به ویل: داسې هیڅکله نشي کیدای چې زه اوعمرو بن عمر الثقفي پاتې شو او وحې پر محمد نازله شي .غه د هجــرت په لومړي کال د شرک په حالت کې مړ شو.

**ابولهب :** د پیغمبر علیه السلام تره او د غه له سرسختو دښمنانوڅخه و.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراو نور.

| وخت: | مقدماتي کړنې | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | **مقدمه** :<br>ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو له سلام او احوال پوښتنې وروســته د ټــولګي نظم برابروي، نظافت ګوري، حاضري اخلي او د امکان په صورت کــې کورنۍ دنده ګوري. نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې او د پخــواني لوست د ارزونې لپاره له یوه زده‌کوونکي څخه د پروني لوســت پــه اړه پوښتنه کوي : پیغمبرﷺ د صفا غونډۍ ته ولې پورته شو او خپلو خپلوانو ته یې د وینا مهم ټکي څه وو؟<br>د صحیح ځواب په اوریدلو له یو بل زده‌کوونکي څخه پوښتنه کوي چې د اسلامي دعوت په وړاندې د قریشو عکس العمل څنګه و؟ د صحیح ځواب په اوریدلو د نني لوست سرلیک پر تخته لیکي او د نن ورځې په لوســت پیل کوي<br>. | زده‌کوونکي ځواب وایي: وعلیکم السلام .<br>او وایي : رسول الله صلی الله علیه وسلم د بلنې د ښکاره کولو لپاره د صفا غونډۍ ته پورته شو.<br>وروسته بل زده کونکی ځــواب ورکوي |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن پــه ورو ولــولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي، بيا دلوست عبارت په ځــو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم په ساده او لنـډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې کچې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي.<br>**۱_ له وليد سره د قريشو مشوره.**<br>**۲_ پيغمبر ﷺ ته په ساحر ويلو د قريشو اتفاق.**<br>**۳_ د قريشو له خوا د طرحه شوې دسيسې نقشه.**<br>**۴_ د لوست ګټو ته د زده‌کوونکو متوجه کول.**<br>ښوونکی دې زده‌کوونکي پاراګراف په پاراګراف له ځان سره ساتي تر څو په نورو کړنو بوخت نه شي.<br>په لوست کې ورکړای شوی فعاليت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرحوي.<br>په آخر کې د لوست د مهمو مطالبو په شميرلو درس خلاصه کړ. | زده‌کـــوونکي دې د لوســـت د عبارت لوستلو پر مهال کتاب تــه ځير شي<br>د ښوونکي تشريح ته دې غوږ شي<br><br>زده‌کوونکي دې ځواب ووايي<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره وليکي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډيز:**<br>مشرکينو غوښتل چې د پيغمبر ﷺ د بعثت خبره پټه پاتې شي، د بيت الله د زيارت د موسم په رارسيدو هغوی ټول وليد ته وارخطا ورټول شول چــې اوس څه وکړي، ترڅو زايرين د پيغمبر ﷺ د دعوت تر اثر لاندې رانـــشي او د بعثت خبر يې خپور نشي. ټولو په اتفاق دا خبره غوټه کړه چې خلکـــو ته به وظيفه ورکړو چې زايرينو ته ووايي:<br>د محمد خبرې مه منئ. هغه ساحر دی او د دې کار مسؤوليت ابولهب پـــه غاړه واخيست. | – زده کوونکي بايــد دلوســـت لنډيزته غوږونيسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شـــفاهي او يـــا کتبـــي ډول ارزوي او د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهيدلو ځان ډاډه کوي. | _زده کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناســـبې لارښوونې کوي. | ــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنـــده په کورونو کې ترسره کړي. |

**دريم لوست**:

**سرليک:** د مخالفينو له خوا د دعوت د خپرېدو مخنيوی

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱ د دعوت د مخنيوي په باب د قريشو له دسيسو څخه خبر شي.

۲_ د مشرکانو د استازي، عتبه بن ربيعه په غولوونکي وړانديز، چې پيمغبرﷺ ته يې وکړ، وپوهيږي.

۳- پر دې وپوهيږي چې داعي هيڅکله هم د دعوت فرصت له لاسه نه ورکوي .

۴_ د لوست پر ګټو پوه شي تر څو يې په ژوند کې عملي کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

عتبه بن ربيعه بن عبد الشمس بن عبد مناف په ابو الوليد مشهور و او د قريشو له مشرانو څخه و.

عتبه هماغه څوک و چې رسول الله يې د ايمان په طمعه له عبد الله بن ام مکتوم څخه مخ واړاوه چې په هکله يې د عبس آيت نازل شو او بيا د بدر په ورځ لاس په لاس جګړه کې د حضرت حمزه رضی الله عنه له لاسه ووژل شو.

**د تدريس طريقې:** توضيحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي لارښودکتاب، د سيرت کتابونه، تخته، تباشير او نور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:** ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو له سلام او احوال پوښتنې څخه وروسته ټولګي منظم کوي، حاضري اخلي د زده‌کوونکو له ستونزو ځان خبروي او د ادارې په مرسته د هغو د حل لارې برابروي. نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې او د پخواني لوست د ارزونې لپاره ښوونکی د تير لوست په اړوند پوښتنه کوي، مثلا: قريشو د دې لپاره چې د پيغمبرﷺ دعوت د مکې د زايرينو په وړاندې بې اغيزې کړي، څه وکړل؟د صحيح ځواب په اورېدو له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي، د قريشو نورې دسيسې څوک بيانولای شي؟ د همدې پوښتنې دځواب په اوريدو سره د نوي لوست سرليک پر تخته ليکي او نوی لوست پيل کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي له راتللو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډير درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعليکم ووايي، خبرې دې يې په غور واوري زده‌کوونکي ځواب ووايي |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول :** ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم پـه سـاده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې درجـې زده‌کـوونکي ورڅخه ګټه اخلي. | زده‌کوونکي دې خپل کتاب ته ځير شي . زده کونکي دي ځـواب ووايـي او پوښتنې دې مطرح کړي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ۱ـ د اسلامي دعوت د مخنیوي په غرض د قریشو هر راز دسیسې.<br>۲ـ پیغمبر علیه السلام ته د مشرکانو د استازي عتبه بن ربیعه وړاندیز .<br>۳ـ د لوست ګټو ته د زده‌کوونکو هڅونه، ترڅو یې هغوی په خپل ژوند کې پلي کړي او د لوست څخه د نورو ګټو د راویستلو هڅه وکړي.<br>ښوونکی پوه او ځیرکه زده‌کوونکي ستایي او کم ذهنه زده‌کوونکي تشویقوي.<br>په لوست کې ورکړای شوي فعالیتونه په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرحوي، په آخر کې په اسانو او لنډو عباراتو سره د درس لنډیز وړاندې کوي | زده‌کوونکي دې د لوست پر ګټو ځان پوه کړي او په ژوند کې دې ورڅخه کار واخلي.<br>زده‌کوونکي ځواب وایي<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره ولیکي |
| ۵<br>دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>پیغمبرﷺ په داسې شپو او ورځو کې د دعوت په ښکاره کولو مامور شو چې مکې مکرمې ته د زایرینو د راتګ موسم پیلیدونکی و، نو د دې لپاره، چې مشرکینو زایرینو ته د حق دعوت د رسیدلو مخه نیولی وي، د ولید بن مغیره په مشرۍ یې دا پرېکړه وکړه دوی به په ټولو زایرینو کې دا خبره خپروي چې محمدﷺ ساحر دی. خبره یې مه منئ او د دې دسیسې د عملي کولو مسؤولیت ابولهب په غاړه واخیست، خو الله تعالی د دوی د کوښښونو باوجود د پیغمبرﷺ د بعثت خبر په ټوله جزیرة العرب کې خپور کړ. | – زده کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږونیسي. |
| ۱۰<br>دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول ارزوي ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهیدلو ځان ډاډه کړي. | ـزده‌کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ـ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## **څلورم لوست**:

**سرلیک:** ابو طالب ته د قریشو د پلاوي لیږل

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱ــ پوه شي چې ولی ابو طالب ته پلاوی ولیږل شو.

۲ــ پوه شي چې ابوطالب ته د پلاوي وړاندیز دا و چې رسولﷺ له دعوت څخه منع کړي.

۳ــ پوه شي چې رسولﷺ د لمر او سپوږمۍ پر یادونې څنګه دریځ اختیار کړ.

۴ــ پر دې و پوهیږي چې د مثبت اصلاح او بدلون لاره دعوت ده .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

ابوطالب بن عبدالمطلب د رسولﷺ تره و، چې پر رسولﷺ باندې ډېر مهربانه و او له وړکتوب څخه یې د هغه ﷺ پالنه کړې وه. د هغه په خوشحالۍ خوشحاله کیده او د هغه په تکلیف او ستونزو غمجن کیده. له مسیب‎رضي الله عنه څخه روایت دی چې کله ابوطالب د مرګ په مرض پروت و، نو رسولﷺ هغه ته ورغی. دغه مهال ابوجهل هم له ابوطالب سره ناست و. رسولﷺ ابوطالب ته وویل: کاکا جانه! یوازې د (لا اله الا الله) کلمه ووایه، زه به ستا لپاره له الله‌ﷻ څخه ښښنه وغواړم. ابو جهل او عبدالله بن ابي امیه ورته وویل: ابوطالبه! اوس په دې آخر کې د عبدالمطلب دین پرېږدې؟ همدا و چې ابوطالب د ژوند په وروستیو شیبو کې هم د عبدالمطلب دین پرېنښود او وفات شو. رسولﷺ وویل: تر څو چې مې الله تعالی منع نه کړي زه به همیشه د هغه لپاره ښښنه غواړم. بیا د توبې سورة ۱۱۳ آیت نازل شو او رسولﷺ یې د مشرکانو لپاره د ښښنې له غوښتنې څخه منع کړ. ابوطالب د رسولﷺ لپاره د یو سپر مثال درلود. د دې کبله مشرکان هغه ته ورغلل، ترڅو د رسولﷺ د بلنې مخه ونیسي.

**ابوجهل:** نوم یې عمرو بن هشام دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم دده په هکله فرمایلي دي: په هر امت کې یو فرعون وي او د دې امت فرعون ابوجهل دی.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب درسي ممد کتابونه، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیر او نور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیق | **مقدمه** : <br>ښوونکی ټولګی ته د سلام په اچولو داخلیږي. تر ټولو د مخه د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي. د ټولګي نظم برابروي، نظافت ګوري او بیا حاضري اخلي. <br>نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې او د پخواني لوست د ارزونې لپاره د یوې لنډې مقدمې مثلا : په پروني لوست کې مو د دعوت د مخنیوي په هکله د قریشو د مشرکینو هڅې ولوستلې، د نن ورځې په لوست کې به د حق دعوت د مخنیوي لپاره د مشرکینو یوه بله هڅه ولولئ په ویلو د نن ورځې د لوست سرلیک پر تخته لیکي او لوست پیل کوي. <br>. | زده‌کوونکي دې په ډېر درنښت د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام وایي، د هغه خبرې دې په غور واوري. |

| | | |
|---|---|---|
| | | |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :** <br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولــولي او پخپلــه د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکــو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي. <br>۱ـ قریشو ولې خپل پلاوی ابوطالب ته ولیږه؟ <br>۲ـ د ابوطالب په هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکول. <br>۳ـ د هغو غوښتنو څرګندونه چې قریشو رسولﷺ ته وړاندې کړې . <br>۴ـ قریشو ته د رسولﷺ د ځواب په هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکول. <br>۵ـ رسولﷺ ته د ابوطالب د ډاډ په هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکول. <br>٦ـ د لوست ګټې زده‌کوونکو ته بیانول. <br>ښوونکی د ځینو مطالبو اوفعالیت په اړوند زده‌کوونکو سره مباحثــه کــوي او د ځینو پوښتنو په کولو هغوی د ځان سره په درس کې شریکوي. په پــای کــې دې لوست لنډیز بیانوي | زده‌کوونکي دې کتابونو ته ځیر شي تشریح ته دې غوږ کیږدي <br><br><br><br><br>زده‌کوونکي دې د لوســت پر ګټو ځان پوه کړي . <br>زده کوونکي دې ځــواب ووایــي او پوښــتنې دې وکړي <br>د لوست مهم مطالــب دې له ځان سره ولیکي . |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:** <br>مشرکان د دې لپاره چې د دعوت مخه یې نیولې وي ابوطالب ته ورغلل، ترڅو پــه دې کار کې هغه له ځان سره شریک کړي او په ضمن کې یې دا ورته وویل چې که ستا وراره محمد هر څه غواړي موږ به یې ورکړو. هماغه و چې ابو طالب هغــهﷺ راوغوښت او د دوی له وړاندیز او غوښتنو څخه یې خبر کړ. <br>پیغمبرعليه السلام ورته وویل چې زه له دوی څخه یوازې یوه خبره غواړم هغه دا چې دوی دې ووایي: ((لا اله الا الله)) او په بل روایت کې راغلي چې پیغمبرﷺ وویل : کــه دوی خپل ټول واک ما ته راکړي، نو بیا به هم زه خپل دعوت پرېنږدم. | ـ زده‌کـــوونکي بایـــد دلوست لنډیزته غوږونیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول ارزوي ترڅو د لوست پــر موخو د زده‌کوونکو له پوهیدلو ځان ډاډه کړي. | ـزده کوونکي ســوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښــوونې کوي. | ـ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## پنځم لوست:

**سرلیک:** د حبشې په لور هجرت

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱ــ په دې مطلب پوه شي چې مسلمانانو د قریشو د تعذیبونو له امله حبشې ته هجرت وکړ.

۲ــ حبشې ته د لومړۍ ډلې مسلمانانو له هجرت څخه خبرشي.

۳ــ د قریشو د مشرانو د مسلمانیدلو د خبر په اړه، چې حبشه کې مهاجرینو ته ورسید معلومات تر لاسه کړي.

۴ــ حبشې ته د دویمې ډلې مهاجرینو په هجرت پوه شي.

۵ــ پردې پوه شي چې کله مسلمانان ونه کولای شي خپل د دین احکام اومناسک په سمه توګه ترسره کړي، نو د هجــرت لار اختیاروي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**حبشه** : د هغه وخت یو پراخه ملک و. شمال ته یې بربري خلیج، جنوب ته یې البر، شرق ته یې الزنج او غرب ته یې البجة واقع و.

نجاشي چې اصلي نوم یې اصحمه و، د پیغمبرﷺ په زمانه کې د همدې ځای پاچا و. بالاخره یې ایمان راوړ. پیغمبرﷺ ته بــه یې ډالۍ لیږلې او پیغمبرﷺ به قبلولې، کله چې وفات شو، جبریل‌ﷺ رسولﷺ ته د هغه د مرګ خبر ورکړ، نو پیغمبــرﷺ د خپلو اصحابو سره ورباندې د غایبانه جنازې لمونځ ادا کړ.

حبشه اوس مهال دایتوپیا په نامه یادیږي چې دافریقا په لویه وچه کې موقعیت لري. شمال اولویدیځ ته یې ســودان، شــمال ختیځ ته یې اریتیریا، سویل ته یې کینیا او ختیځ ته یې د صومالیا او جیبوتي ملکونه پراته دي .

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکو فعالیت: |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** : ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو، له سلام او احوال پوښتنې څخه وروسته ټولګی منظم کوي، حاضري اخلي د زده‌کوونکو له ستونزو ځان خبروي د اداري په مرسته د هغو د حل لارې برابروي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده ګوري. نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې او د پخواني لوست د ارزونــې لپاره پوښتنه مطرحوي چې څوک د پرونې لوست مطلب په څو لنــډو ټکو کې ویلی شي او ګټې یې کومې دي.د صحیح ځواب په اوریــدو د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او نوی لوست پیلوي. | **د زده‌کوونکي فعالیت:** زده‌کوونکي د ښوونکي له راتللو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي. په ډیــر درنښت دې د خپل ښوونکي ســلام تــه وعلیکم السلام وایي، د هغه خبرې دې په غــور اوري او د پوښـــتنو ځــواب دې ورکوي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول** : ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولــولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي، بیا د لوست عبــارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفــاهیم پــه ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کــوي چــې د هــرې درجــې | زده‌کوونکي دې د عبارت د لوستلو پــر مهال کتابونو ته ځیر شي. د مطالبو د تشریح پرمهال دې ښــوونکي ته غوږ ونیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| زده‌کوونکي حبشې ته د دوارو هجرتونو دلاملونو په اړوند لــه ښــوونکي ســره مباحثه کوي<br>– زده‌کوونکي د لوست دستونزو دحــل لپاره هڅه کوي، که چيري کومي پــايلې ته ونه رسيدل بيا به له ښــوونکي څخــه مرسته غواړي.<br>– زده‌کوونکي د ښوونکي پوښــتنو اود کتاب فعاليت ته په ليکلې او يا شفاهي بڼه ځواب ورکوي.<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان ســره وليکي. | زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي.<br>۱_ حبشې ته د مسلمانانو د هجرت کيسه.<br>۲_ په حبشه کې مهاجرينو ته د قريشو د مشرانو د مسلمانيدو د خبــر رسيدل.<br>۳_ حبشې ته د مسلمانانود دويمې ډلې هجرت.<br>۴_ د لوست د ګټو څيړل.<br>ښوونکی د لوست په اړوند د زده‌کوونکو پوښــتنو تــه غــوږ اږدي اوبشپړ ځواب ورکوي.<br>ښوونکی په لوست کې ورکړی شوی فعاليت په خپل ځــای کــې لــه زده‌کوونکو سره مطرحوي او په پای کې د لوست لنډيز بيانوي. | |
| – زده‌کوونکي بايد د لوست لنډيزته غوږ ونيسي. | **د لوست لنډيز:**<br>کله چې پر مسلمانانو د قريشو د مشرکينو ظلم او تيری زيات شو، نــو پيغمبرﷺ خپلو اصحابو ته (حبشې) ته د هجرت کولــو وفرمايــل. د نبوت په پنځم کال لومړۍ ډله مهاجرين، چې ټول شپاړس تنه و حبــشې ته مهاجر شول، کله چې هغوی ته د مــشرکينو د مــسلمانيدلو خبــر ورسيد هغوی ټول واپس مکې ته راغلل. مکې ته په رسيدلو چــې پــه حقيقت پوه شول. ځينې يې د يو شمېر په پناه کې مکې ته داخل شــول او نور له ويرې بيرته حبشې ته لاړل . کله چې د مشرکينو زوررزيــاتې نور هم پر مسلمانانو زيات شو، نو دويمه ډله مسلمانان، چې شمير يــې (۱۰۲) تنو ته رسيده، حبشې ته مهاجر شول. | ۵ دقيقې |
| _زده‌کـــوونکي ســـوالونوته ځوابونـــه ورکوي. | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او يا کتبي ډول ارزوي، ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهيدلو ځان ډاډه کړي. | ۱۰ دقيقې |
| ـــ زده‌کوونکي دې کـــورنۍ دنـــده پـــه کورونوکې ترسره کړي. | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | |

**شپږم لوست**:

**سرلیک:** د حبشې د مهاجرینو پر خلاف د قریشو دسیسه

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱ـ حبشې ته د قریشو د استازو له لیږلو خبر شي.

۲ـ د نجاشي پاچا درباریانو ته د قریشو د استازو د سپارښتنې په باره کې معلومات ترلاسه کړي.

۳ـ د نجاشي د ذهنیت خرابولو په خاطر د قریشو د استازو په هڅو پوه شي.

۴ـ د مسلمانانو د ویاند په څرګندونو خبرشي.

۵- د خپل دین او عقیدې پر ارزښت پوه شي، ترڅویې د مادیاتوپه بدل ونه پلوري .

۵ـ د نجاشي له غبرګون څخه خبر شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

عمرو بن العاص بن وائل القریشي السهمي د هجرت په اتم کال د مکې له فتحې څخه څو میاشتې مخکې ایمان راوړ او بیا نبيﷺ د جیش سلا سل امیر تعین کړ.

د حبشې د مهاجرینو رئیس حضرت جعفربن ابي طالب و چې په شیخ المهاجرین مشهورو .

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** :<br>ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو له سلام او احوال پوښتنې وروسته زده‌کوونکي منظم کوي، نظافت ګوري، حاضري اخلي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده ګوري.<br>نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې او د پخواني لوست د ارزونې لپاره پوښتنه کوي چې د قریشو د زور زیاتي له امله مسلمانان څو ځله حبشې ته مهاجر شول او د مسلمانانو شمیر په لومړي او وروستي ځل کې څو تنو ته رسیده.<br>د صحیح ځواب په اورېدلو د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او نوی لوست پیل کوي. | زده کوونکي دې د ښوونکي له راتلو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډېر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووایي، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ووایي دهغه خبرې دې په غور واوري یو زده کوونکی دې ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي، بیا د لوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي. | زده‌کوونکي د عبارت د لوستلو پر مهال کتابونو ته ځیر وي<br>د ښوونکي تشریح دې په غور واوري |

| | | |
|---|---|---|
| | ۱ــ د نجاشي پاچا درباریانو ته د قریشو د استازو له پلوه د سپارښتنې په اړه معلومات.<br>۲ــ له مسلمانانو سره د قریشو د کینې د کچې تعینول چې حتی حبشې ته یې استازي ولېږل، ترڅو هلته هم مسلمانان په ارام پرې نږدي.<br>۳ــ د مسلمانانو د ویاند څرګندونې.<br>۴ــ د نجاشي د دریځ څېړنه.<br>۵ــ د مسلمانانو په حق کې د نجاشي د ذهنیت خرابولــو د دسیــسې شنډېدل.<br>٦-.ښوونکی د مکي پلاوي د غوښتنې پر ضد د نجاشي پر دریځ لــه زده‌کوونکو سره مباحثه کوي<br>۷- ښوونکی زده‌کوونکي د لوست ګټو ته متوجه کوي، تر څو هغوی دغه فواید په خپل ژوند کې پلې کړي او زده‌کوونکو ته دې د لوســت په اړوند د پوښتنو موقع ورکړي.<br>۸- ښوونکی کوښښ کوي چې د زده‌کوونکو په مرسته له لوست څخه نورې ګټې لاس ته راوړي.<br>۹- ښوونکی نوې کلمې او اصطلاحات څرګندوي او په لوست کـــې ورکړای شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرحوي او د فعالیت په اجرا کې ځیرکه زده‌کوونکي ستايي او د لا ښتوب لپـــاره نور زده‌کوونکي هم تشویقوي . | او د لوست د موضوعاتو په اړونـــد دې له ښوونکي سره مباحثه وکړي .<br><br><br><br><br>زده‌کوونکي دې د لوســـت ګټــې زده کړي او په خپل ژوند کې دې ورڅخـــه کار واخلي<br>- زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي، که چیري کومي پایلې ته ونه رسیدل بیا به له ښوونکي څخـــه مرسته غواړي.<br>زده‌کـــوونکي دې ځـــواب ووایـــي او پوښتنې دې وکړي<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره ولیکي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د مکې مشرکینو د دې لپاره چې مسلمانان په حبشه کې ارام ژوند ونـــه لري د حبشې پاچا ته یې استازي ولیـــږل، ترڅـــو مهـــاجرین دوی تـــه وسپاري، خو د حبشې پاچا اصحمه د مسلمانانو د ویانـــد د صـــادقانه څرګندونو په پای کې د مشرکانو په ناوړو ارادو پـــوه شـــو او د دوی ظالمانه نقشه یې شنډه کړه. دقریشو استازي یې له حبشې څخه وواېستل او مسلمانانو ته یې د خپل خوا ډاډ ورکړاو ویې نازول. | - زده‌کوونکي باید دلوســـت لنډیزتـــه غوږونیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول ارزوي ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهېدلو ځان ډاډه کړي. | ــزده‌کـــوونکي ســـوالونوته ځوابونـــه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ـــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنـــده پـــه کورونوکې ترسره کړي. |

## اووم لوست:

**سرلیک:** د حضرت حمزهؓ اسلام راوړل

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

**۱ــ حضرت حمزهؓ ته د وینځې د کیسې له کولو څخه خبر شي.**

**۲ــ له ابو جهل څخه د حضرت حمزهؓ د غچ اخیستلو په اړه معلومات تر لاسه کړي.**

**۳ــ د ابو جهل په عکس العمل پوه شي.**

**۴– د پیغمبر علیه السلام له زغم او حوصلې څخه خبر شي تر څو یې په خپلو ځانونو کې پیدا کړي .**

**۴– د لوست فواید وپیژني او ګټه ترې واخلي .**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د پیغمبرﷺ ترونه:** دپیغمبرﷺ لس ترونه دي: زبیر، ابوطالب، حمزهؓ، مقدم، عباسؓ، ضراره، حارث، قثم، ابولهب، غیداق چې له دوی څخه یوازې دوه ترونو یې (حمزه او عباس) اسلام قبول کړی دی.

حضرت حمزهؓ له پیغمبرﷺ څخه دوه کاله مشر و. د ده رضاعي ورور هم و او د احد په ورځ شهید او د ابوسفیان میرمنې هندې یې ځیګر وکاږه او ویې ژووه.

**د پیغمبرﷺ تروروګانې:**

پیغمبرﷺ شپږ تروروګانې درلودې: ام حکیم، عاتکه، بره، امیمه، اروی او صفیه رضی الله عنها د دوی له جملې څخه د صفیې رضی الله عنها په ایمان راوړلو د علماؤ اتفاق دی، که څه هم چې ابن سعد او ابن قیم د اروی د ایمان راوړلو خبره هم ذکر کړې ده.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکي فعالیت: |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** : ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو سلام اچوي، حاضري اخلي، زده‌کوونکي منظموي، نظافت ګوري، نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې لپاره پوښتنه کوي. حضرت حمزهؓ څوک پیژني؟ د همدې پوښتنې د ځواب په اوریدو سره د لوست سرلیک پر تخته لیکي او لوست پیل کوي. . | زده‌کوونکي دې د ښوونکي له راتللو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي. په ډیر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم ووایي، خبرې دې په غور واوري دخپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ووایي. یو زده‌کوونکي دې ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :** ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي | زده‌کوونکي دې کتاب ته ځیر شي او ځواب دې ووایي. له لوست څخه د نورو ګټو د راویستلو هڅه دې وکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| | چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي.<br>۱ـ حضرت حمزهؓ ته د وينځې له خوا پر حضرت محمدﷺ د ابوجهل د تيري کولو کيسه.<br>۲ـ د حضرت حمزهؓ له خوا له ابوجهل څخه غچ اخيستل.<br>۳ـ د ابو جهل غبرګون<br>۴ـ د لوست ګټو ته د زده‌کوونکو پام اړول.<br>ښوونکی د لوست عبارت پر يو زده‌کوونکي لولي او د هر مطلب په هکله له نورو زده‌کوونکو سره مباحثه کوي.<br>ښوونکی له لوست څخه د نورو ګټو په ترلاسه کولو زده‌کوونکي هڅوي، هوښيار زده‌کوونکي ستايي او نور تشويقوي.<br>ښوونکی ورکړې شوی فعاليت په خپل ځای کې له زده‌کوونکو سره مطرحوي او زده‌کوونکو ته جرات ورکوي تر څو خپل نظر په ډاډه زړه بيان کړی | د لوست ګټې په ژوند کې پلي کوي.<br>– زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي که چيري کومي پايلې ته ونه رسيدل بيا به له ښوونکي څخه مرسته غواړي.<br>زده‌کوونکي دې ځواب ووايي<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره وليکي. |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>د بعثت په شپږم کال يوه ورځ پيغمبرﷺ د صفا غونډۍ ترڅنګ تشريف درلود. ناڅاپه ابوجهل ورباندې راغی او د بدو ردو ويلو سره سره يې په تيږو وويشت، او سر مبارک يې ورته وينی کړ. د عبدالله بن جدعان وينځې چې دغه زړه دردوونکې پېښه په خپلو سترګو ليدلې وه حضرت حمزهؓ ته يې چې تازه له ښکاره راغلی وکيسه وکړه.<br>حضرت حمزهؓ، چې د قريشو تکړه ځوان و، په ابوجهل پسې ورغی له هغه څخه د غچ اخيستلو له غوسې سره يې د اسلام وړانګو زړه ته لار وموندله او مسلمان شو. | – زده‌کوونکي بايد دلوست لنډيزته غوږونيسي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او يا کتبي ډول ارزوي، ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهيدلو څان ډاډه کړي. | ـزده‌کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ـــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**اتم لوست**:

**سرليک: د حضرت عمرؓ اسلام راوړل**

**وخت: يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)**

**موخې: زده‌کوونکي بايد:**

**۱ـ پر هغو خبرو پوه شي چې د حضرت عمرؓ او حضرت نعيمؓ تر منځ وشوې.**

**۲ـ د عمر په زړه کې د اسلام د حقانيت له ځای نيولو څخه خبر شي.**

**۳ـ پر دې وپوهيږي چې حضرت عمرؓ ته د فاروق لقب چا او کله ورکړی دی.**

**۴ـ د اصحابو کرامو له ايثار، سرښندنې او قوي ايمان څخه خبر شي او په خپل ځان کې يې راولي.**

**۵- د لوست پر ګټو پوه شي تر څو يې په خپل ژوند کې پلي کړي.**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د حضرت عمرؓ د نسب سلسله : عمر بن خطاب بن نفيل بن عبدالعزى بن رباع بن فرط بن رزاح بن عدي بن کعب بن لؤي، اميرالمؤمنين ابو حفص القريشي العدوي.**

**مور يې حنتمه نوميده د هشام المخزومي لور او د ابو جهل خور وه. ديارلس کاله له پيغمبرﷺ نه کشر و. د قريشو له اشرافو څخه و او د قريشو د سفير عهده يې په غاړه لرله. کله به چې د قريشو په خپل منځ کې او يا له نورو قبيلو سره څه شخړه راغله، نو دی به يې سفير ورليږه.**

**پيغمبرﷺ د ابوبکر او حضرت عمرؓ په باره کې ويلي دي: که تاسې دواړه په کومه مشوره کې متفق شئ، زه ستاسو مخالفت نه کوم.**

**او ويل به يې: دا دواړه د غوږ او سترګو حيثيت لري.**

**او ويل به يې: که زما څخه وروسته بل نبي راتلای نو هغه به عمر وای.**

**او ويل به يې: ای عمر! په الله قسم چې شيطان درسره مخامخ کيدلی نشي، شيطان حتماً خپله لاره بدلوي.**

**د ابوبکر صديقؓ د وفات په ورځ ورسره بيعت وشو اود مسلمانانو خليفه شو.**

**حضرت نعيمؓ د امام بخاري رح په قول د نعيم د پلار نوم النحام دی او نحام د عبدالله القريشي العدوي زوی دی. په يوه قول د اجنادين د جګړې په ورځ وفات شوی او په بل قول د موته د غزا په ورځ وفات شوی.**

**خباب بن الأرتؓ د لومړنيو (السابقون الاولون) مسلمانانو له ډلې څخه دی او د هغه وخت تولې ترخې ستونزې يې ګاللي دي.**

**سعيد بن زيدؓ له عشره مبشره وو څخه دی او د يرموک په جګړه کې چې له روميانو سره وه شهيد شو.**

**د تدريس طريقې:** توضيحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندويه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سيرت کتابونه، تخته، تباشيراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکي فعالیت: |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | **مقدمه** :<br>ښوونکی ټولګي ته په ننوتلو له سلام او احوال پوښتنې څخه وروسته حاضري اخلي. د ناسوبو زده‌کوونکو د غیر حاضرۍ لامل معلوموي او په اړه یې له اداري سره مشوره کوي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده ګوري.<br>نوي لوست ته د زده‌کوونکو د هڅونې لپاره د حضرت عمرؓ په هکله چ د امکان په صورت کې کورنۍ دنده ګوري ې د اسلام له خورا مشهورو او نامتو شخصیتونو څخه دی، له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوي، د صحیح ځواب په اوریدلو د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او نوی لوست پیلوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي له راتګ دمخه په ټولګي کې منظم ناست وي. په ډیر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم ووایي، خبرې دې یې په غور واوري، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې ځواب ووایي |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي، بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي.<br>ښوونکی د حضرت عمرؓ په څېر سخت دریځه انسان کې د لوی بدلون او تغیر د لامل په اړوند له زده‌کوونکو سره خبرې اترې کوي او د هغوی نظرونه اوري.<br>ښووونکی د لوست د موضوع په اړه د زده‌کوونکو پوښتنو ته غوږ نیسي او په خورا مهربانۍ سره ځواب ورکوي.<br>ښوونکی په لوست کې ورکړې شوی فعالیت په خپل ځای له زده‌کوونکو سره مطرحوي او په پای کې یو ځل بیا د لوست مطالب په لنډ ډول زده‌کوونکو ته بیانو ي. | زده‌کوونکي دې د عبارت لوستلو پر مهال کتاب ته ځیر شي، تشریح ته دې غوږ ونیسي د لوست په اړه د ښوونکي سره مبا حثه کوي.<br>زده‌کوونکي دې خپل نظر بیان کړي.<br>زده‌کوونکي ځواب وایي.<br>د لوست ګټې په ژوند کې پلي کوي.<br>– زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي، که چیري کومي پایلې ته ونه رسیدل، بیا به له ښوونکي څخه مرسته غواړي.<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره ولیکي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>حضرت عمر بن الخطابؓ، چې د قریشو له نومیالیو شخصیتونو څخه و، له اسلام راوړنې څخه د مخه یې له پیغمبرﷺ سره دښمني دې حد ته رسیدلې وه، چې مجبور شو د هغهﷺ د وژنې په اراده له کوره ووځي. وایي تقدیر ته تدبیر نشته لومړی له نعیم سره کتنې د ده اراده کمزورې کړه او بیا یې له خپل اوښې او خور سره جګړې په پای کې د قرآن د سورة طهٰ د څو آیتونو په لوستلو الله تعالی د ده عزم بدل کړ او د دې پر ځای چې خپل | – زده‌کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږونیسي. |

| | | |
|---|---|---|
| | قصد ترسره کړي، پر حضرت محمدﷺ يې ايمان راوړ او ځان يې د پيغمبرعليه السلام د دې دعا مورد وګرځاوه چې ((ای الله)) ته اسلام په يو د عمرينو (عمربن خطاب او عمرو بن هشام) باندې قوي کړه او بيا ورته د تل لپاره د فاروق د لقب ګټلو اعزاز ور په برخه شو. | |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او يا کتبي ډول ارزوي، ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهيدلو ځان ډاډه کړي. | ـزده‌کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**نهم لوست**:

**سرلیک:** هر اړخیزه مقاطعه

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱– هغه پیښې وپیژني چې مشرکان یې اندېښمن کړي وو.

۲– د ظلم او تیري د ترون په هکله، د قریشو د ځینو مشرکینو په نظریاتو پوهیدل.

۳ – د مسلمانانو سر سخته دښمن وپیژني .

۴– د محاصرې د ختمیدو په هکله د ابو طالب له وړاندیز څخه خبر شي.

۵– د پیغمبر علیه السلام له صبر او زغم څخه خبر شي او د محمدي دعوت په حقانیت متیقن شي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

ابن قیم وایي: دا ترون منصور بن عکرمه بن عامر ولیکه او ځیني نور تاریخ پوهان وایي چې، لیکوونکی یې نضر بن حـــارث و، خو غوره تاریخي روایت دا دی چې لیکوونکی یې بغیض بن عامر بن هاشم و، چې د رسول اللهﷺ په ښــیرا ســره یــې دواړه لاسونه شل شول.

د محاصرې پر مهال به هم له ابوطالب سره د رسول اللهﷺ د ساتنې غم و، له دې امله کله به چې شپه پخه شوه، نو د رسول اللهﷺ د خوب ځای به یې بدل کړ او خپل ځوی او یا وروړ به یې د هغه پر ځای څملاوه، ترڅو رسول اللهﷺ د مشرکانو لـــه شر څخه په امان وي. جبریل امین رسول اللهﷺ ته راغی خبر یې ورکړ چې د مقاطعې سند چینجیو خوړلی، یـــوازې د الله ﷻ نوم په کې پاتې دی. ابوطالب دا خبره خلکو ته وکړه. خلکو چې وکتل دې خبرې واقعیت درلود، نو هغه سند یې څیري کړ او مقاطعه پای ته ورسیده. د ترون پاښو شلیدل د رسول اللهﷺ د حقانیت ستر دلیل و، خو مشرکان وروسته له دې نور هـــم د حق په مقابله کې راووتل.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکي فعالیت: |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** :<br>ښوونکی لومړی ټولګي ته په داخلیدو سلام اچـــوي د زده‌کوونکـــو د احوال پوښتنه کوي. د ټولګي نظم برابر وي. د زده‌کوونکو حاضري اخلي د غایبو زده‌کوونکو د غیر حاضرۍ لامل معلوموي د امکان پـــه صورت کې کورنۍ دنده اونظافت ګوري .<br>نوي لوست ته د زده‌کوونکو دهڅونې لپاره د تیر لوست په اړه پوښتنه کوي حضرت عمرؓ ته چا او کله د فاروق لقب ورکړ؟ د سم ځواب په اوریدلو د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او لوست پیل کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي لـــه راتللـــو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي په ډیر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام وایي، خبرې یې په غـــور اوري، د خپل نـــوم پـــه اوریـــدلو دې د حاضرۍ ځواب ووایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي، بیا دلوست عبـــارت | زده کونکي دې د عبارت لوستلو پر مهال کتاب ته ځیر شي، تشریح تـــه دې غـــوږ شي. |

| | | |
|---|---|---|
| | پر ځو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم پـــه ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چـــې د هـــرې درجـــې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي.<br>۱ــ ولې دغه پړیکوڼ په هر اړخیز پریکوڼ ونومول شو؟<br>۲ــ زده‌کوونکو ته د هغو اسبابو او لاملونو څرګنـــدول کـــوم چـــې مشرکان یې اندېښمن کړې وو.<br>۳ــ د ظلم او تیري د تړون د لیکوونکي په هکله څرګندونه .<br>۴ــ د تړون د مودې په هکله څرګندونه .<br>۵ــ د تړون د مخالفت کوونکو په هکله معلومات .<br>٦ــ د مسلمانانو تر ټولو سخت دښمن پیژندل.<br>۷ــ د ابو طالب د وړاندیز په هکله معلومات .<br>۸– د لوست د ګټو څرګندول .<br>ښوونکی د لوست د مطالبو پورې اړوندې پوښتنې کوي تـــر ځـــو زده‌کوونکي له ځان سره په لوست کې بوخت او ځوابونه یې اصلاح کړي.<br>د لوست د موضوع په هکله، که چیرې کومه ستونزه موجـــوده وي د هغې د حل لپاره هڅه کوي<br>په لوست کې ورکړې شوی فعالیت په خپل ځای کې له زده‌کوونکـــو سره مطرحوي او په پای کې د لوست لنډیز وړاندې کوي. | – زده‌کوونکي دې د لوســـت ګټـــې زده کړي او په ژوند کې دې ورڅخـــه ګټـــه واخلي.<br>– زده‌کوونکي دې ځواب ووایي.<br>– د لوست مهم مطالب دې له ځان سره ولیکي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د څلورو پرله پسې پیښو په رامنځته کیدلو، چې یوه یې له بلې څخـــه درنه وه، مشرکین دومره وار خطا شول چې د پیغمبرﷺ د وژلو تصمیم یې ونیوه، که څه هم د ځان د نابودۍ له وېرې یې خپل تصمیم پرېښود خو د داسې ظلم نقشه یې طرحه کړه چې تر وژلو درونداو دردونکې و. هغه په (شعب ابو طالب) کې د مسلمانانو محاصره کـــول و چـــې پوره درې کاله یې دوام وکړ او په پای کې د ځینو کسانو د مخالفـــت او په خپله د پیغمبرﷺ د معجزانه وړاندیز له امله ماته شوه. | – زده‌کوونکي بایـــد دلوســـت لنډیزتـــه غوږونیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول ارزوي ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهیدلو ځان ډاډه کړي. | ــزده‌کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ــ زده‌کوونکي دې کـــورنۍ دنـــده پـــه کوروونوکې ترسره کړي. |

**لسم لوست**:

**سرلیک:** د غم کال (عام الحزن)

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ د غم د کال په هکله معلومات حاصل کړي.

۲ـ د خدیجة الکبری رضی الله عنها او ابو طالب د مړینې په هکله معلومات تر لاسه کړي.

۳ـ پر دې وپوهیږي چې د ابو طالب له مړینې وروسته رسول اللهﷺ ته څه پیښ شول؟

۴ـ طایف ته د رسول اللهﷺ له سفر څخه خبر شي.

۵ـ پوه شي چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم دعوت په خپل طبیعی بڼه له مختلفو پړاوونو څخه په تیریدو، ستونزمنه او له غمونو ډکه لاره ووهله او د ثبات او استقامت په ښودلو بریالی شو، چې دهغه صلی الله علیه وسلم دغه سنت به تر قیامت پورې دوام ولري،له دې امله هیڅ یو داعي باید د خپل لږ کار په بدله کې د خارق العاده پایلوهیله من نشي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د بعثت لسم کال د غم په کال (عام الحزن) ونومول شو. ځکه، په دغه کال کې لومړی د رسول اللهﷺ تره ابو طالب، چې د هغه لپاره یې د ډال حیثیت درلود، وفات شواو بیا د رسولﷺ د ژوند ملګرې حضرت خدیجه رضی الله تعالی عنها چې د رسول اللهﷺ غم شریکه وه، او په تکالیفو او ستونزو کې به ورسره ملګرې وه، وفات شوه، څرګنده ده چې د داسې شخصیتونو په مړینه ټول مسلمانان غمجن وو. بیا وروسته له دې څخه په طایف کې د طایف خلکو هم د رسول اللهﷺ ملاتړ ونه کړ، نو له دې امله دغه کال د غم په کال ونومول شو.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده کوونکو فعالیت: |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | **مقدمه** :<br>ښوونکی لومړی ټولګي ته د سلام په ورکولو داخلیږي، د زده کوونکو د احوال پوښتنه کوي، د ټولګي نظم برابروي، بیا حاضري اخلي، د امکان په صورت کې کورنۍ دنده اونظافت ګوري .<br>نوي لوست ته د زده کوونکو دهځونې لپاره، د یوې لنډې مقدمې، لکه (د قریشو مشرکانو پر مسلمانانو ډول، ډول ظلمونه کول.د هغو ظلمونو څخه یو د ابوطالب په وادۍ کې د مسلمانانو محاصره وه، چې د رسول اللهﷺ په حقانیت پای ته ورسیده، د دغو ظلمونو په وړاندې د مسلمانانو یو ډال و چې هغه له ابوطالب څخه عبارت و، ابو طالب به همیشه د مسلمانانو دفاع کوله، خو کله چې مړ شو د مشرکانو ظلم او تیری پر مسلمانانو زیات شو)د دې مطلب په ویلو دې د پخواني او اوسني لوست تر منځ تړاو راولي د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او نوی لوست پیلوي. | زده کوونکي دې د ښوونکي له راتللو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي. په ډیر درنښت دې د خپل ښوونکي سلام ته وعلیکم السلام ووایي،، د خپل نوم په اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ووایي دښوونکي خبرې دې په غور واوري |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او | زده کوونکي دې کتاب ته ځیر شي. |



| | | |
|---|---|---|
| | پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي، بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم پــه ســـاده او لنډو عباراتوسره داسې تشريح کوي چې د هرې درجـــې زده‌کـــوونکي ورڅخه ګټه اخلي.<br>۱_ د غم کال ولې په دې نوم ونومول شو؟ په دې هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>۲_ تر ټولو لوی غم چې رسولﷺ يې غمجن کړ هغه د بي بي خـــديجې رضی الله عنها مړينه وه، په دې هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>۳_ ابوطالب د رسولﷺ لپاره د يو دېوال په څير و چې هغه ﷺ به يې له ستونزو څخه ساته.<br>۴_ کله چې رسولﷺ ډېر غمجن شو، نو د طايف په لور روان شو، پــه دې هکله زده‌کوونکي پوهوي.<br>ښوونکی د لوست ګټې زده‌کوونکو ته بيانوي او له لوست څخه د نورو ګټو د تر لاسه کولوغوښتنه کوي.<br>د لوست پورې اړوندو پوښتنو په مطرحولو سره زده‌کوونکي لـــه ځـــان سره په درس کې شريکوي او د هغوی پوښتنوته ځواب ورکـــوي. پـــه لوست کې ورکړی شوی فعاليت په خپل ځای کې مطرحوي او په پـــای کې د لوست لنډيز وړاندې کوي . | – زده کوونکي دلوست دســـتونزو دحل لپاره هڅه کوي، که چيـــرې کومې پايلې ته ونه رسيدل بيا به له ښوونکي څخه مرسته غواړي.<br>زده‌کوونکي دې د لوست ګټې پـــه ژوند کې عملي کړي.<br>زده کوونکي دې مناسب ځوابونـــه ووايي.<br>د لوست مهم مطالب دې له ځـــان سره وليکي |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>د نبوت لسم کال د غم په کال ونومول شو. ځکه کله چې په شعب ابو طالب کې د مسلمانانو محاصره پای ته ورسيده، لا څو ورځـــې نـــه وې تيرې شوې چې د پيغمبرﷺ تره که څه هم په خپل پلرني دين و، خـــو د پيغمبرﷺ او مسلمانانو لپاره يې دستر پناه ځای حيثيت درلود وفات شو. ورپسې حضرت خديجه رضی الله تعالی عنها چې د پيغمبرﷺ تر ټولو غټه محسنه وه او پيغمبرﷺ يې د ژوند تر وروستيو پورې د احساناتو يادونـــه کوله وفات شوه.<br>او پيغمبرﷺ د اسلام او مسلمانانو لپاره يې ملاتړ پيدا کړی وي طـــايف ته لاړ او هيله يې درلوده چې ګوندې د طايف خلک بـــه د ده دعـــوت ومني او د مکې مشرکانو په مقابل کې به يې ملا وتړي، خـــو د طـــايف خلکو نه يوازې د ده دعوت قبول نه کړ، بلکې په ډېر بد چلند يـــې لـــه طايف څخه په وتلو مجبور کړ. | – زده‌کوونکي بايد دلوست لنډيزته غوږونيسي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او يا کتبي ډول ارزوي ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهيدلو ځان ډاډه کړي. | _زده کوونکي سوالونوته ځوابونـــه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناســـبې لارښوونې کوي. | ــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونو کې ترسره کړي. |

**یوولسم لوست**:

**سرلیک:** طایف ته د رسول اللهﷺ د سفر تفصیل

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده کونکي باید:

۱_ طایف ته د پیغمبرﷺ د سفر په هکله تفصیلي معلومات ترلاسه کړي.

۲_ له طایف څخه د پیغمبرﷺ پر وایستلو خبر شي.

۳_ په خواشیني زړه د پیغمبرﷺ له دعا غوښتنې څخه خبر شي.

۴_ له پیغمبرﷺ سره دعداس له پیژندګلوۍ خبر شي.

۵_ پر دې وپوهیږي چې پیغمبرﷺ د ټولو عالمیانو لپاره رحمت دی.

٦– دپیغمبر صلی الله علیه وسلم پر ریښتینولۍ باندې متیقن شي.

۷_ د اسراء او معراج له واقعې څخه خبر شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

اسرا او معراج: له هغو امتیازي نښو څخه یوه نښه ده چې الله تعالی پرې زموږ پیغمبر حضرت محمدﷺ له نـــورو پیغمبرانـــو څخه ویاړمن کړی دی.

اسرا د شپې تللو ته ویل کیږي او معراج د هغې الې نوم دی چې پورته کیدل پرې کیږي، .«اسراء» فعل شو او «معـــراج» د هغې الی نوم شو چې پیغمبرﷺ ورباندې آسمان ته پورته شوی دی، ځینې علماء یې په تکرار قایل دي او ځینې وایي چـــې دا همدا یو ځل شوی دی.

**حکم یې** : د عامو خلکو لپاره په اسراء او معراج ایمان لرل اجمالاً واجب دي او د علماوو لپاره تفصیلاً واجب دي.

مسجد اقصی یا بیت المقدس: دویم مسجد دی چې ملائکو له مسجد الحرام څخه څلویښت کاله وروسته جوړ کړی دی او په قدس کې واقع دی. دریم د حرمینو مسجد دی. د ترمذي په حدیث کې راغلي دي کله چې ابراهیم علیه السلام د کعبـــې بنیادونه جګ کړل، یعقوب علیه السلام څلویښت کاله له دې وروسته د بیت المقدس بنیادونه جوړ کړل.

د معراج د شپې لپاره خاص پروګرام جوړول او محفلونه نیول بدعت دي، ځکه زموږ سلف صالحینو دا کار نه دی کړی.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکو فعالیت: |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** :<br>ښوونکی لومړی ټولګي تـــه د ســـلام پـــه ورکولـــو داخلیـــږي، د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، د ټولګي نظـــم برابـــروي، بیـــا حاضري اخلي، د ناسوبو زده‌کوونکو د غیر حاضرۍ لامـــل ځانتـــه معلوموي او د امکان په صورت کې کورنۍ دنده اونظافت ګوري .<br>بیا له زده‌کوونکو څخه پوښتي : پیغمبرﷺ طایف ته په کوم کال او د ولې سفر وکړ.<br>د صحیح ځواب په اورېدلو د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکـــي او | زده‌کوونکي دې د ښوونکي له راتللـــو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي، په ډېر درنښت دې د خپل ښـــوونکي سلام ته وعلیکم ووایي، د خپل نوم پـــه اوریدلو دې د حاضرۍ ځواب ووایي، دهغه خبرې دې په غور واوري.<br>زده‌کوونکي دې ځواب ووایي. |

| | | |
|---|---|---|
| | نوی لوست پیل کوي. | |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي. بیا د لوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهیم په ساده او لنډو عباراتوسره داسې تشریح کوي چې د هرې درجې زده‌کوونکي ورڅخه ګټه اخلي<br>۱ـ له طایف څخه د پیغمبرﷺ وایستل.<br>۲ـ د عتبه او شیبه په باغ کې له الله تعالی سره د رسول علیه السلام عرض او نیاز<br>۳ـ له عداس سره یې پیژندګلوي<br>۴ـ دا چې پیغمبرﷺ د خپلو دښمنانو لپاره هم د خیر غوښتونکی و.<br>۵ـ د لوست ګټو ته د زده‌کوونکو پام اړول.<br>د لوست د عبارت د لوستلو پر مهال د زده‌کوونکو تیروتنې اصلاح کوي د مهمو مطالبو په هکله له زده‌کوونکو سره مباحثه کوي.<br>په لوست کې ورکړی شوی فعالیت په خپل ځای کې مطرح کوي.<br>د ښوونکي حرکات او اشارې ښایي ډېرې ادبي وي، زده‌کوونکو ته موقع ورکوي چې د لوست د موضوع پورې اړوندې پوښتنې وکړي.<br>په پای کې د لوست لنډیز زده‌کوونکوته وړاندې کوي. | زده‌کوونکي دې کتاب ته ځیر شي.<br><br>زده‌کوونکي دې د لوست تشریح ته په غور سره غوږ شي.<br><br>له ښوونکي سره دې دلوست دموضوعاتو په هکله مباحثه وکړي.<br><br>– زده‌کوونکي دلوست دستونزو دحل لپاره هڅه کوي. که چیري کومې پایلې ته ونه رسیدل بیا به له ښوونکي څخه مرسته غواړي.<br><br>زده‌کوونکي دې ځواب ووایي.<br><br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره ولیکي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>کله چې پیغمبرﷺ له اویا میله پیاده مزل وروسته طایف ته ورسید، پوره لس ورځې یې د هغه ځای بیلا بیل مشران اسلام ته راوبلل. له بده مرغه نه یوازې د طایف خلکو یې دعوت ونه مانه، بلکې په کاڼو ویشتلو یې له طایف څخه وتلو ته اړ کړ، چې له کاڼو ویشتلو تنګ شو، نو د عتبه او شیبه باغ ته ورتاو شو په خواشیني زړه یې دعا وغوښته. له عداس سره یې همدلته وپیژندل. بیا په خورا مات زړه مکې ته د ستنیدو په لار کې خبر ورکړ چې د غرونو پرښتې ورته د مکې د خلکو د هلاکولو، د دې لپاره چې هغه ﷺ رحمت للعالمین و پرښته یې منعه کړه او د خلکو د هدایت غوښتنه یې وکړه. | – زده کوونکي باید دلوست لنډیزته غوږونیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکې زده‌کوونکي په شفاهي او یا کتبي ډول ارزوي ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهیدلو ځان ډاډه کړي. | ـزده‌کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ـ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

## دولسم لوست:

**سرليک:** د عقبې لومړنی بیعت

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱ــ د عقبې له لومړني بیعت څخه خبر شي.

۲ــ د بیعت کال، د بیعت ځای او د بیعت ټکي وپیژني.

۳ــ په مدینې منورې کې د قرآن کریم او اسلامي زده کړو د ښوونکي په اړه معلومات تر لاسه کړي.

۴ــ په دعوت کې د اخلاص پر اغیزه پوه شي.

٦− پر دې وپوهیږي چې د اسلام په خپرولو کې د ځوانانو رول څومره ارزښتناک و.

۵ــ د سعد بن معاذ﷛ او د هغه د قوم له مسلمانیدو څخه خبرشي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د مدینې شپږ تنه مشران، چې د بعثت په ۱۱ کال یې ایمان راوړی، و دا دي: سعد بن زرارة، عوف بن الحارث بن رفاعة، رافع بن مالک بن عجلان، قطبه بن عامر بن حدیدة، عقبة بن عامر بن نابي بن زید، جابر بن عبدالله بن رئاب.

دولس تنه په عقبه اولی کې دا دي:

له بني نجارو څخه :أسعد، عوف او معوذ د عفراء زامن.

له بني زریق څخه: ذکوان بن عبد قیس او رافع بن مالک.

له قواقل څخه: عبادة بن صامت او ابو عبدالرحمن یزید بن ثعلبه د همدوی حلیف .

له بني عمرو بن عوف څخه: عباس بن عبادة بن نضلة .

له بني سلمة څخه: عقبة بن عامر بن نابي.

له بني سواد څخه: قطبة بن عامر.

او له اوس څخه: دوه تنه وو ابوالهیثم بن التیهان الأشهلي اوعویم بن ساعده.

دا بیعت عینا د هماغه بیعت په شان دی چې رسول الله ﷺ د مکې د فتحې په ورځ د قریشو له ښځو څخه واخیست په سورت ممتحنه کې ذکرشوي دی.

مصعب بن عمیر﷛ د لومړنیو مسلمانانو څخه و چې حبشې او مدینې منورې ته یې هجرت کړی و او په مدینې منورې کې په معلم القرآن پیژندل کیده. په عقد مواخات کې پیغمبرﷺ له ابو ایوب انصاري سره ملګری کړی و. د احد په ورځ له رسول الله ﷺ څخه د دفاع کولو په حالت کې په داسې حال کې، چې بیرغ یې په لاس کې و، د څلوېښت کلنۍ په عمر شهید شو او په یو څادر کې خخ کړای شو.

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیراونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکو فعالیت: |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** : ښوونکی لومړی د سلام په ورکولو ټولګي ته داخلیږي، د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي د ټولګي نظم برابروي، بیا حاضري اخلي، د امکان په | زده‌کوونکي دې د ښوونکي له راتللو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي. په ډیر درنښت دې |

| | | |
|---|---|---|
| | صورت کې کورنۍ دنده اونظافت ګوري .<br>لوست ته د زده‌کوونکود هڅونې لپاره پوښتنه کوي چې څوک کولای شي د تير لوست مهم مطالب بيان کړي. د سم ځواب په اوريدلو د نوي لوست سرليک پر تخته ليکي او نوی لوست پيل کوي. | د خپل ښوونکي سلام ته وعليک ووايي، خبرې دې يې په غور واوري، د خپل نوم په اوريدلو دې د حاضرۍ ځواب ووايي.<br>زده‌کوونکي دې ځواب ووايي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول :**<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوست متن په ورو ولولي .<br>پخپله د لوست جانبي سرليکونه پر تخته ليکي. بيا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لاندې مطالب او مفاهيم څرګندوي، ترڅو زده‌کوونکي ترې ګټه پورته کړي.<br>**۱ــ د عقبې د لومړي بيعت پورې اړوند معلومات**<br>**۲ــ په مدينې منورې کې د قرآن او اسلامي زده کړو د ښوونکي فعاليتونه**<br>**۳ــ د سعد بن معاذ رضي الله عنه او د هغه د قوم د مسلمانيدلو کيسه**<br>ښوونکی زده‌کوونکي په ګروپونو ويشي، يو يو تن د خپل ګروپ په استازيتوب له پورتنيو مطالبو څخه يو يو مطلب په خپلو الفاظو شرح کوي او بيا د لوست د موضوع په اړه سره مباحثه کوي.<br>ښوونکی د لوست ګټې زده‌کوونکو ته بيانوي او هغوی د نورو ګټو تر لاسه کولو ته هڅوي.<br>ښوونکی د زده‌کوونکو څارنه کوي او په ډېر شفقت سره د هغوی خطاګانې ورپه ګوته کوي.<br>په لوست کې ورکړی شوی فعاليت په خپل ځای کې مطرحوي. په پای کې د لوست لنډيز وړاندې کوي | زده‌کوونکي دې کتاب ته ځير شي او ځواب دې ووايي<br><br>زده‌کوونکي دې په ډلو وويشل شي، د لوست د موضوع په اړه دې په خپلو منځو کې مباحثه وکړي<br><br>زده‌کوونکي دې ځواب ووايي<br>د لوست مهم مطالب دې له ځان سره وليکي |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>د بعثت په دولسم کال د حج په موسم کې د مدينې منورې د دولسو کسانو له پيغمبر ﷺ سره په لومړي ځل په عقبه نومي ځای کې په پنځو ټکو بيعت وکړ.<br>کله چې د حج موسم پای ته ورسيد، نو پيغمبر ﷺ مصعب بن عمير رضي الله عنه له بيعت کوونکو سره مدينې منورې ته وليږه، ترڅو هلته دعوت وکړي او مسلمانانو ته د دين احکام ور زده کړي. مصعب د اسعد بن زراره په کور کې او سيده، د اسيد بن حضير او سعد رضی الله عنهما په شمول، چې د بني اشهل د قبيلی مشران وو، د مدينې منورې ډېرو اوسيدونکو ايمان راوړ. | – زده‌کوونکي بايد دلوست لنډيزته غوږونيسي. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او يا کتبي ډول ارزوي ترڅو د لوست پر موخو د زده‌کوونکو له پوهيدلو څخه ډاډه کړي. | ــزده کوونکي سوالونوته ځوابونه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړوند مناسبې لارښوونې کوي. | ــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونوکې ترسره کړي. |

**دیارلسم لوست**:

**سرلیک:** د عقبې دویم بیعت

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱_ د عقبې د دویم بیعت په اړه معلومات ترلاسه کړي.

۲_ د عقبې د دویم بیعت په هکله د کعب بن مالک رضي الله عنه په څرګندونو خبر شي.

۳_ په عقبې کې د پیغمبر ﷺ د ملاتړ په باب د حضرت عباس له وینا خبر شي.

۴_ په غونډې کې د ګډونوالو له څرګندونو څخه معلومات حاصل کړي.

۵_ د بیعت ټکي وپیژني.

٦– وپوهیږي چې مسلمانان په خپلو وعدو او تړونونو وفا کوي.

٦_ د لوست پر ګټو پوه شي او په ژوند کې یې عملي کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

هغه نقیبان چې د عقبې په دویم بیعت کې تعین شول، عبارت دي له :

۱– أسعد بن زراره د بني نجار نقیب چې د خزرج له قبیلې څخه و.

۲_ سعد بن عباده د خزرج څخه.

۳_ سعد بن الربیع بن عمرو له خزرج څخه

۴_ رافع بن مالک بن عجلان له خزرج څخه

۵_ البراء ابن معرور بن صخر له خزرج څخه

٦_ عبدالله بن عمرو بن حرام له خزرج څخه

۷_ عباده بن الصامت بن قیس له خزرج څخه

۸_ عبدالله بن رواحه بن ثعلبه له خزرج څخه

۹_ المنذر بن عمرو بن خنیس له خزرج څخه

۱۰_ أسید بن حضیر له اوس څخه

۱۱_ سعد بن خیثمه له اوس څخه

۱۲_ رفاعه بن عبدالمندر بن زبیر له اوس څخه

**د تدریس طریقې:** توضیحي، مباحثوي، پوښتنه او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** درسي کتاب، دښوونکي لارښود کتاب، د سیرت کتابونه، تخته، تباشیر اونور.

| وخت: | مقدماتي کړنې: | د زده‌کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه** :<br>ښوونکی لومړی ټولګي تــه د ســلام پــه ورکولــو داخلیــږي، د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، د ټولګي نظــم  برابــروي، بیــا حاضري اخلي، د امکان په صورت کې کورنۍ دنده اونظافت ګوري .<br>له یوه زده‌کوونکي څخه پوښتنه کوي:  د عقبې د لــومړني بیعــت اساسي ټکي کوم دي<br>د صحیح ځواب له اورېدلو څخه وروسته د نوي لوست سرلیک پــر تخته لیکي او نوی لوست  پیلوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي له راتللــو مخکې په ټولګي کې منظم ناست وي، په ډېر درنښت دې د خپــل ښــوونکي سلام ته وعلیکم ووایي، د خپل نوم پــه اوریدلو دې د  حاضرۍ ځواب ووایي د هغه خبرې  په غور اوري.<br>زده‌کوونکي  ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول** :<br>ښوونکی له زده‌کوونکوڅخه غواړي چې د لوســت مــتن پــه ورو ولولي او پخپله د لوست جانبي سرلیکونه پر تخته لیکي. بیا دلوست عبارت په څو تنو زده‌کوونکو لولي او هغوی ته لانــدې مطالــب او مفاهیم  څرګندوي، ترڅو زده‌کوونکي ترې ګټه پورته کړي.<br>۱ــ د عقبې د دویم بیعت په اړه د کعب بن مالک﷛ څرګندونې.<br>۲ــ عقبې ته د پیغمبرﷺ د راتګ څرنګوالی.<br>۳ــ د بیعت د دروندوالي په هکله د حضرت عباس﷛ خبرې.<br>۴ــ په غونډه کې د ګډونوالو څرګندونې.<br>۵ــ د بیعت د موادو څېړل.<br>٦ــ د بیعت کوونکو دریځ په ګوته کول.<br>۷ــ د لوست د ګټو بیان او زده کوو نکي پر دې پوهول چې په خپل عملي ژوند کې يې تطبیق کړي.<br> په لوست کې ورکړې شوی فعالیت او پوښتنې په خپل ځــای کــې مطرحوي.<br>په پای کې  د لوست مهم مطالب د لنډیز په ډول بیانوي. | زده‌کوونکي دې کتاب ته ځیر شي<br><br>زده‌کــوونکي دې پــه غــور ســره د ښوونکي تشریح ته غوږ شي<br><br>زده‌کوونکي دې د لوســت ګټــې زده کړي او په ژوند کې دې ورڅخه کــار واخلي<br>زده‌کوونکي دې په خپلو منځــو کــې مباحثه وکړي<br>د لوست مهم مطالب دې  له ځان سره ولیکي |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>د بعثت په دیارلسم کال د مدینې منورې پنځه اویا تنــو مــسلمانانو (درې اویا نارینه وو او دوه میرمنو) د عقبې په دوهم بیعت کــې لــه پیغمبرﷺ سره بیعت وکړ. په دې بیعت کې له نبيﷺ سره يې تــره حضرت عباس﷛ هم راغلی و .که څه هم چې ایمان يې نه و راوړی، خو د موضوع د اهمیت په غرض له خپل وراره سره راغی د بیعــت کولو په مقدماتي خبرو اترو کې دواړو لورو یو پــر بــل شــرطونه کېښودل او په هکله يې یو بل ته سره ژمن شول. | – زده‌کوونکي باید دلوســت لنډیزتــه غوږونیسي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی زده‌کوونکي په شفاهي او یــا کتبــي ډول ارزوي، ترڅو د لوست پر موخو  د زده‌کوونکو له پوهیدلو ځان ډاډه کړي. | ــزده‌کــوونکي ســوالونوته ځوابونــه ورکوي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې پــه اړونــد مناسبې لارښوونې کوي. | ــ زده‌کوونکي دې کورنۍ دنــده پــه کورونو کې ترسره  کړي. |

**لومړی لوست:**

**عنوان:** په اسلامي شريعت کې معاملات (۱)

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې).

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. د اسلامي شريعت د معاملاتو ځانګړتياوې وپېژني.
۲. په ځانګړې توګه د تجارت له خصوصيتونو او اوصافو څخه خبر شي.
۳. په اسلام کې د مسلمان تاجر فضيلت او مرتبه وپېژني.
۴. د تجارتي معاملاتو په تاجر کې دغه اوصاف عملي او پيدا کړي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

پر هر مسلمان باندې لازم دي چې د نورو ملکيتونو ته په درنه سترګه وګوري، هېڅ ډول تېری پرې ونه کړي او لــه نـــاروا لارو څخه يې خوړل حرام وګڼي، لکه څرنګه چې الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾ ژباړه: اوتاسې مـــه خورئ په خپلو منځونو کې د يو بل مالونه په ناروا توګه.

**۱. د مسلمان تاجر صفتونه:**

أ. مسلمان بايد تل ريښتونی او امين وي، په ځانګړي ډول په اخيستلو او خرڅولو کې له هر ډول درواغو، چل او درغلـــي څخه ځان وژغوري، ځکه هغه څوک چې په معاملاتو (راکړه ورکړه) کې ريښتونی وي الله تعالی يې په مال کې برکـــت اچوي پيغمبر صلی الله عليه وسلم په دې اړه فرمايلي دي: « الْبَائِعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِكَ لَهُمَا فِـــي بَيْعِهِمَا وَإِنْ كَذَبَا وَكَتَمَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا»[1] ژباړه: (که چېرې اخيستونکی او خرڅوونکی دواړه په معامله کې ريـــښتيا ووايي او د مبيعې عيب ښکاره کړي الله تعالی به يې په راکړه ورکړه کې برکت واچوي او که يې د مبيعې عيب پټ کړ او يا يې دروغ وويل نو له راکړې ورکړې څخه به يې برکت پورته کړل شي). پيغمبر صلی الله عليه وسلم د هغه ســـړي په هکله چې لندې دانې يې د وچو دانو څخه لاندې ځای پر ځای کړې وې داسې وويل: « مَنْ غَـــشَّنَا فَلَـــيْسَ مِنَّـــا »[2] ژباړه: هر چا چې موږ ته دوکه راکړه زموږ له ډلې څخه نه دی.

ب. مسلمان تاجر بايد د خرڅولو پر مهال له هر ډول قسم خوړلو څخه ځان وساتي او په خپل تجارت کې ګټه يا تاوان د الله تعالی له لوري وګڼي. په حديث شريف کې راځي: (د خرڅولو پر مهال له هر ډول قسم خوړلو څخه ځانونه وژغـــورئ، يقيناً قسم خوړل په مبيعه کې د مشتري مينه زياتوي خو برکت يې له منځه وړي).

ج. مؤمن تاجر بايد په خپلو کارونو کې د زغم او حوصلې څښتن وي، د مراجعينو د ترخو الفاظو او ويناوو پـــه مقابـــل کـــې لـــه صبر او زغم څخه کار واخلي، د خپلو ښو اخلاقو له کبله خلک په راکړه ورکړه سره ډاډمـــن کـــړي او کـــه د عيـــب او يـــا کوم بل سبب له امله پلورل شوی جنس د فسخ او اقالې په حيث بېرته ورته رد کړل شي بايد په پراخـــه ســـينه او روڼ تنـــدي سره يې واخلي تر څو هغه په حديث شريف کې ذکر شوی موعود ثواب يې په برخه شي او که چا يې د مبيعې يـــا قيمـــت پـــه اړه کوم نقصان په ګوته کړ هغه ومني. پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: (يقيناً الله تعالی هغه ســـړي خـــوښ ګڼـــي چـــې د پلورلو او پيرودلو پر وخت له ښه سوچ کولو څخه کار اخلي).

---

[1] – السنن الکبری للبيهقي. ط المعارف بالهند – (۵ / ۲۶۹)
[2] – السنن الکبری للبيهقي. ط المعارف بالهند – (۵ / ۳۵۵)

د. مسلمان تاجر باید د پلورلو او تجارت په شرعي مسایلو پوه وي تر څو په حرامو کې پرې نه وځي او له داسې معاملې څخه ځان وژغوري چې د حرمت شبهه په کې موجوده وي. مسلمان تاجر باید منعه شوې بیعې وپېژني او که په کومه معامله کې ورته شک پیدا شي په اړه یې له علماوو څخه پوښتنه وکړي.

په قرآن کریم او نبوي مبارکو احادیثو کې د تجارت ډېر فضائل بیان شوي دي، ځکه چې د پرمختګ او هوسا ژوند بنسټ پر تجارت ولاړ دی. د پرمختللو قومونو او هېوادونو اقتصادي پیاوړتیا پر تجارت ولاړه ده، د اسلام سپیځلي دین لاډېر مخکې د تجارت ارزښت او فضیلت بیان کړی او خلک یې ورته هڅولي دي.

۲. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

۳. **مرستندویه درسي توکي:** د لوست کتاب د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

## د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:** ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو وروسته د زده‌کوونکو کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د اووم ټولګي د فقهې د مضمون په اړه له زده‌کوونکو څخه لازمې پوښتنې کوي.<br>ښاغلی ښوونکی په زده‌کوونکو کې د نوي لوست لپاره انګېزه پیدا کوي، دوی د نوي لوست ښه زده کولو ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ( په اسلامي شریعت کې معاملات) دی په تخته لیکي او په اسلام کې د معاملاتو (راکړې ورکړې) په هکله د اسلام د مبین دین د ځانګړیو احکامو او آدابو په اړه پوره معلومات ورکوي. وروسته له زده‌کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو څخه غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لوست په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی په زده‌کوونکو باندې د تجارت (معاملاتو) هغه ځانګړتیاوې چې اسلامي شریعت ورته وضع کړې، حفظ کوي.<br>ښاغلی ښوونکی په زده‌کوونکو باندې د سوداګرۍ (تجارت) آداب تکراروي او له دوی څخه غواړي تر څو دغه آداب حفظ کړي او په اړه یې یو له بل سره مباحثه وکړي.<br>له دې څخه وروسته د لوست د ښه زده کولو په غرض ښاغلی ښوونکی خپل زده‌کوونکي ارزوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br>ضعیف زده کوونکي دې لوست ولولي.<br>زده کوونکي دې یې عملي کړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>لاندېنیو پوښتنو ته ځواب ورکړئ:<br>۱– په اسلام کې د معاملاتو ځانګړتیاوې بیان کړئ.<br>۲– هر زده کوونکی دې د تجارت له آدابو څخه درې آدابه ذکر کړي.<br>۳– د ریښتینې او امین تاجر غوره والی بیان کړئ. | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>اسلامي شریعت لکه څرنګه چې د عقایدو، اخلاقو او عباداتو په هکله ارزښتناکې لارښوونې لري، د معاملاتو (راکړې ورکړې) په هکله یې هم ځانګړي احکام او آداب وضع کړي دي، تر څو خلک خپل معاملات د عدل او ریښتینولۍ په فضا کې له درغلۍ او دوکې څخه لرې سرته ورسوي. نو لازمه ده چې هر مسلمان د معاملاتو دشرعي احکامو څخه باخبره وي، روا او ناروا احکام وپیژني، دا باور تر لاسه کړي چې د اسلامي ادابو او احکامو په پام کې نیولو سره معامله کول اجر او ثواب لري او د انسان په مال کې د برکت لامل ګرځي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي. |
| | **کورنی کار:**<br>ستاسو په نظر یو تاجر باید کوم آداب مراعات کړي؟ په دې هکله یوه لنډه مقاله ولیکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي . | زده کوونکي دې د غوښتل شوې موضوع په اړوند یوه مقاله ولیکي |

**دويم لوست**:

**عنوان:** د بيعې فقهي اصطلاحات

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې).

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

د بيعې ځيني فقهي اصطلاحات وپېژني.

د بيعې د فقهي مصطلحاتو پر مفاهيمو وپوهېږي.

په خپلو ورځنيو چارو کې يې عملي کړای شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

۱. په هر علم او فن کې داسې ځانګړي اصطلاحات شته چې د هغه فن د مفاهيمو او مقاصدو ترجماني کوي. فقه هم د نورو علومو په څېر ځانګړي اصطلاحات لري چې د فقهې له مبادیو او مسايلو څخه پرې تعبير کېږي. مخکې له دې چې له فقهي احکامو او مسائلو سره آشنا شو په کار ده چې لومړی ځيني فقهي اصطلاحات وپېژنو.

د اخيستلو او خرڅولو پر وخت په څو خبرو باندې ځان پوهول ډېر اړين دي. بايد لومړی خرڅول، اخيستل، خرڅوونکی، اخيستونکی، د پلورلو توکي، د اخيستلو وسيله يا مال او د پلورلو تړون هر يو بېل بېل وپېژنو.

۲. **بيع:** بيعه په عربي ژبه کې د خرڅولو په معنی ده خو کله د اخيستلو په معنی هم راځي او د فقهې په اصطلاح کې (د بايع او مشتري په رضايت سره) د يوه مال په بل مال بدلولو ته بيعه وايي او کله چې د فقهې په کتابونو کې بيع ذکر شي نو خرڅول ورڅخه مراد وي. الله تعالی فرمايي: ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا ﴾ [البقرة : ۲۷۵] ژباړه: بيعه (خرڅول) الله تعالی روا کړې او سود يې حرام کړې دی.

۳. **بايع:** بايع د بيعې د کلمې اسم فاعل دی چې پلورونکي او خرڅوونکي ته ويل کېږي.

۴. **شراء:** په عربي ژبه کې اخيستلو ته ويل کېږي، خو کله د خرڅولو په معنی هم راځي، لکه څرنګه چې الله تعالی فرمايي: ﴿وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍ بَخْسٍ﴾ [يوسف : ۲۰] ژباړه: او يوسف عليه السلام يې په لږو او ناڅيزو پيسو باندې خرڅ کړ. خو کله چې د شراء کلمه په معاملاتو کې ذکر شي نو بيا اخيستل او پيرودل ورڅخه مرادېږي.

۵. **مشتري:** د شراء د کلمې اسم فاعل دی، اخيستونکي او پيرودونکي ته ويل کېږي.

٦. **ايجاب او قبول:** په معاملاتو کې دا دواړه کلمې د خرڅولو او اخيستلو د تړون له الفاظو څخه عبارت دي.

— **ايجاب:** د اوجب له مادې څخه اخيستل شوی، اثبات ته ويل کېږي او په مشتري باندې د نفيې او يا اثبات ځواب واجبوي. د خرڅولو او اخيستلو د تړون پر وخت خرڅوونکی هم د خپلې وينا پر اساس اخيستونکي ته د ملکيت د ثابتولو واک ورسپاري، لکه چې خرڅوونکی وايي: پر تا مې دا جنس خرڅ کړ، تاته مې درکړ، يا دا جنس ستا شو.

— **قبول:** قبلولو ته وايي او اخيستونکی هم د خرڅوونکي خبره قبلوي او يا يې ردوي. لکه چې اخيستونکی د بايع په ځواب کې ووايي: زما قبول دی، ما هم درڅخه واخيست، يا پرې راضي يم، زما اجازه ده او داسې نور.

۷. **عقد:** له عَقَدَ څخه اخيستل شوی دی چې تړلو او غوټه کولو ته وايي، لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿وَمِنْ شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ﴾ [الفلق : ۴] ژباړه: او له شره د هغو ښځو پناه غواړم چې پوکي کوونکي وي په غوټو کې. په معاملاتو کې له عقد څخه کله پر وعده باندې وفا او کله د خرڅولو تړون مراد وي، خو دلته له عقد څخه د خرڅولو تړون مراد دی.

۸. **مال:** عربي کلمه ده او هر هغه څه ته ویل کېږي چې د انسان طبعیت ورته میلان کوي، د اړتیا تر وخته پورې ذخیره کېدای شي او د فرد یا ټولنې ملکیت ګرځېدلای شي، لکه: نغدې پیسې، ځمکې، باغونه، څاروي، د کور لوښي، د تجارت توکي او داسې نور.

- **په اسلام کې مال د مالیت په اعتبار سره په دوه ډوله وېشل شوی دی:** یو متقوم مال، دا هغه مال ته ویل کېږي چې په اسلامي ټولنه کې د راکړې ورکړې ارزښت ولري لکه چې یادونه یې وشوه او بل غیر متقوم مال دی، دا هغه مال ته ویل کېږي چې د اسلام له نظره ارزښت ونه لري او اخیستل او خرڅول یې منع وي لکه: شراب، خنزیر او داسې نور.

۹. **منقول او غیر منقول مال:** د کیفیت په اعتبار سره مال په دوه ډوله دی. یو هغه ډول مالونه دي چې حمل، نقل او له یو ځای څخه بل ځای ته په آسانۍ سره نقلېږي، دې ډول مالونو ته منقول مالونه ویل کېږي لکه: پیسې، موټر، خوراکي توکي او داسې نور.

بل ډول هغه مالونه دې چې له یو ځای څخه بل ځای ته یې د ذات حمل او نقل ممکن نه وي. دې ډول مالونو ته غیر منقول مالونه ویل کېږي لکه: ځمکې، باغونه، کورونه او داسې نور.

۱۰. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

۱۱. **مرستندویه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

۱۲. **د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:** ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضري اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو، وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>په اسلام کې د معاملاتو ځانګړتیاوې بیان کړئ.<br>څوک کولای شي چې د تجارت (سوداګرۍ) آداب ذکر کړي؟<br>له دې څخه وروسته د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، لوستلو ته یې متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان، چې ( د بیعې فقهي اصطلاحات) دي. په تخته لیکي او هغه اصطلاحات چې په دې لوست کې ذکر شوي دي تعریف او زده‌کوونکو ته یې د زده کولو ارزښت او اهمیت تشریح کوي او په اړه یې معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ووایي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي. |

| | | |
|---|---|---|
| | سره تشريح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعاليت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو بانـدې عملـي کوي، او د دې لپاره چې ښوونکی ښه ډاډمن شي، له زده‌کوونکو څخه د لوسـت په اړه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقيقې | **پوښتنې:**<br>لاندې اصطلاحات تعريف کړئ:<br>أ- ايجاب<br>ب- قبول<br>ج- منقول مال<br>د- متقوم مال<br>د لاندې سمو جملو مخې ته د ( $\sqrt{}$ ) او د ناسمو جملو مخـې تـه د ($\times$ ) نـښه کېږدئ:<br>۱. قبول: هغه خبره ده چې لومړی د عقد د کولو لپاره کيږي( ).<br>۲. عقد: هغه اتفاق دی چې د دوو طرفونو تر منځ د يوه کار د اجرا کولو لپـاره کيږي ( ).<br>۳. بيعه: بدلول د مال دي په منافعو باندې. ( ). | زده‌کـوونکي دې ځـواب ورکړي. |
| ۵ دقيقې | **د لوست لنډيز:**<br>بَيع: بيعه (د بايع او مشتري په رضايت سره) د يوه مال په بل مال بدلولو ته وايي. او بايع، مُشْتَرِي، اِيْجَاب، قَبُول، عَقْد، مَال، مُتَقَوَّم مال، مَنْقُول او غَيْرِ مَنْقُول (عقارات) او داسې نور د بيعې له فقهي اصطلاحاتو څخه دي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي. |
| | **کورنی کار:**<br>د درس اصطلاحات په لنډه توګه وليکئ. | زده کوونکي دې د لوسـت مصطلحات په خپلو کتـابچو کې وليکي. |

## دریم لوست:

**عنوان**: د بيعې د فقهي اصطلاحاتو ادامه

**وخت**: يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې**: زده‌کوونکي بايد:

۱. د فقهې له اصطلاحاتو سره آشنا شي.

۲. د فقهي مصطلحاتو پر مفاهيمو وپوهېږي.

۳. د بيعي فقهي مصطلحات په ورځني ژوند کې عملي کړای شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

۱. مبيعه: د اسم مفعول صيغه ده هغه شی چې بيعه ورباندې واقع شوې وي (مبيعه) بلل کېږي. په بل عبارت هغه څه چې د خرڅولو لپاره وړاندې کړای شوي وي او يا پرې د خرڅولو معاملې صورت موندلی وي مبيعه ورته ويل کېږي.

۲. ثمن: هغه څه ته ويل کېږي چې پلورونکی يې د مبيعې په بدل کې له اخيستونکي څخه تر لاسه کوي، که عين وي، لکه: نغدې پيسې او يا جنس وي، لکه: د لوښي خرڅول په لوښي باندې؛ يا د جامو خرڅول په جامو باندې.

۳. نقود: په پخوا زمانو کې نقود يوازې دوه ډوله معدني موادو ته ويل کېدل؛ يو سره زر او بل سپين زر. دې ډول نقودو ته خلقي نقود هم ويل کېږي. دويم ډول اصطلاحي نقود وو چې ډېره زمانه وروسته خلکو له کم قيمته معدني موادو څخه جوړول لکه: د اوسپنې او مسو څخه جوړې شوې پيسې، دې پيسو ته له دې امله اصطلاحي نقود وايي چې په اصل خلقت کې له اصلي نقودو څخه کم ارزښت لري خو د اړتيا له مخې د اصلي نقودو په بدل کې چلېدلې. په اوسنی زمانه کې د ټولنو تعامل په بانک نوټونو روان دی، چې دا هم د اصلي نقودو بديل دي او د اصلي نقودو حکم لري.

۴. کيلي او وزني: په تېرو زمانو کې د مبيعې پلورل او خرڅول د کيل، وزن، عدد او يا ذراع په وسيله ترسره کېدل، خو اوس له پخوانيو اوزانو څخه يوازې وزني، عددي او ذراعي پاتې دي او کيلي جنسونه د عرف په اساس پر وزني باندې بدل شوي دي.

۵. **کيلي**: کيلي کَيل ته منسوب دی او کيل پيمانې ته ويل کېږي.

٦. **وزني**: وزني هغو شيانو ته ويل کېږي چې پر تله باندې تلل کېږي.

۷. د کيلي او زوني تر منځ فرق:

کيل د حجم مقياس، او وزن د ثقل (درندوالي) مقياس دی چې نن سبا وزني په خپل مقياس پاتې دي خو د حجم د مقياس نوم بدل شوی او لېتر يې ځای نيولی دی.

۸. **عددي**: په پخوا زمانو کې ځيني اجناس د ضرورت يا آسانتيا په اساس په عددي (د شمېرلو) په توګه خرڅېدل لکه پسونه، خاروي، هګۍ او داسې نور.

عددي اجناس عموماً په دوه ډوله دي: يو متقارب عددي او بل متفاوت عددي.

۹. **ذراعي**: د انسان لاس ته له څنګلې څخه د ګوتو تر څوکو پورې ذراع ويل کېږي خو د فقهې په اصطلاح کې له ذراع څخه ګز مراد دی نو کوم شيان چې د ګزونو په وسيله پلورل کېږي ذراعي بلل کېږي. پخوانی ګز څه د پاسه ۳۲ ګوتې و چې اوس په متر باندې بدل شوی دی.

۱۰. **مشاع**: له شيوع څخه اخيستل شوی چې خپور، تيت او پراګنده ته ويل کېږي، خو دلته هغه حق او جنس ورڅخه مراد دی چې د نورو خلکو په برخو کې شريک وي او له هغو څخه بېل شوی نه وي.

۱۱. **مثلي**: مثل ته منسوب دی چې د مشابه او یو رنګ والي معنی لري، لکه چې ویل کېږي، دا شی د دې شي په مثل دی، یعنې دا د دې په څېر دی.

۱۲. **قېمي**: قېمت ته منسوب دی او قېمت د یو جنس هغو پیسو ته ویل کېږي، چې د خلکو له خوا ورته ټاکل شوې وي او د هغه شي په ځای درېږي، نو د یو شي قېمت داسې حیثیت لري لکه عین هماغه شی.

۱۳. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، مناقشوي، ډله ایيزه، پوښتنې او ځوابونه.

۱۴. **مرستندویه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د زده‌کوونکو له حال او احوال او له صحي وضعیت څخه د ځان له خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي هغه وربانديې تکراروي او د نوي لوست لپاره یکې انګېزه پیدا کوي او د نوي لوست ښه زده کولو ته یې متوجه کوي.<br>د نوي لوست په اړه له ورڅخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ( د بیعې د فقهي اصطلاحاتو ادامه) ده په تخته لیکي او د دې اصطلاحاتو د زده کولو د ارزښت او اهمیت تشریح کوي او زده‌کوونکو ته په دې اړه معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ووايي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست په زده‌کوونکو باندې په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي او د دې لپاره چې ښوونکی ښه ډاډمن شي له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده کوونکي دې په پټه خوله لوست ولولي.<br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br>زده کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>د لاندې اصطلاحاتو فرق بیان کړئ:<br>مشاع او غیرمشاع مال<br>عددیات متقاربه او عددیات متفاوته<br>مثلي او قیمي<br>کیلي او وزني<br>ذرعي او عددي | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| | د لاندې سمو جملو مخې ته د ( √ ) او د ناسمو جملو مخې ته د (× ) نښه کېږدئ:<br>مشاع مال: هغه مشترک مال دی چې لا ویشل شوی نه وي، خو د هرشریک برخه د سهم په اساس معلومه وي. (    )<br>عددیات متقاربه: هغه د شمیرلو وړ شیان دي چې د افرادو ترمینځ یې په قیمت کې توپیر وي. (    ).<br>مبیعه: هغه شی ته ویل کیږي چې په بیعه کې اصلي مقصود وي(    ). | |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:** مبیعه : هغه جنس ته ویل کیږي چې ثمن د هغې په مقابل کې واقع کیږي، او په بیعه کې اصلي مقصد وي.<br>ثمن : هغه مال ته ویل کیږي چې د مبیعې په مقابل کې واقع کیږي او غالباً نقود او پیسې وي.<br>لکه: لس منه غنم د زرو افغانیو په مقابل کې. دلته جنس چې غنم دي د پیسو په مقابل کې پلورل شوي دي، نو غنم مبیعه ده او زر افغانۍ ثمن دي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي. |
| | **کورنی کار:**<br>د درس اصطلاحات په مختصره توګه په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | زده کوونکي دې د لوست مصطلحات په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## خلورم لوست:

**عنوان:** د بیعې د فقهي اصطلاحاتو ادامه

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. له فقهي اصطلاحاتو سره آشنا شي.

۲. د فقهي اصطلاحاتو پر شرحه او توضیح باندې سم وپوهېږي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

۱. **رکن البیع:** رکن په لغت کې د یو شي ارزښتناکې برخې ته ویل کېږي او په اصطلاح کې هغه ارزښناک جزء، چې د یو شی ماهیت ورڅخه تشکیلیږي رکن بلل کېږي، لکه د کټ هره پښه چې د کټ په جوړښت کې ارزښتناک رول لري.

۲. **ثمن المسمی او قېمت:** ثمن مسمی د یو جنس هغه قېمت ته ویل کېږي چې بایع او مشتري په اتفاق تعین شــوی وي، د قېمت او ثمن مسمی تر منځ دومره توپیر دی چې ( ثمن مسمی) د جنس له اصلي قیمت څخه کله زیاتې او کلــه کمــې وي، خو قیمت د جنس له معین قېمت څخه کم یا زیاتیدای نشي. یعنې ثمن مسمی له هغه قیمت څخه عبارت دي چــې اخیستونکي او خرڅوونکي پرې اتفاق کړی وي، فرق نه کوي که دغه اتفاق یې د هغه شي له اصلي قیمت څخه په زیاتو او یا کمو پیسو کړی وي، د مثال په توګه: که چېرې څوک یو آس په پنځوس افغانۍ وپلوري او په بــازار کــې د آس قېمت هم پنځوس افغانۍ وي، نو ده دا آس په خپل اصلي قیمت وپلورلو، ځکه چې د آس اصلي قیمت پــه بــازار کــې پنځوس افغانۍ دی خو که یې په دېرش او یا شپیته افغانۍ وپلورلو نو دېرشو یا شپیتو افغانیو ته ثمن مسمی ویل کېږي.

۳. **تاجیل:** تاجیل د تعجیل ضد او د تاخیر په معنا دی. په دې معنا چې د بایع او مشتري په رضایت سره مبیعه یا ثمن د عقد له وخت څخه تر یوې معلومې نېټې پورې وروسته کړل شي، لکه تر یوې معلومې ورځې، میاشتې او کال پورې وځنډول شي.

۴. **تقسیط:** د تفعیل باب دی. کمولو او تقسیمولو ته وېل کېږي او په فقهي اصطلاح کې په څو متعددو نېټو باندې د مبیعې د پیسو تقسیمولو ته تقسیط ویل کېږي، چې دا په راکړه ورکړه کې روا کار دی، لکه څوک چــې بادپکــه واخلــي او خرڅوونکی په دې راضي کړي چې د پکې قېمت به په څو معلومو میاشتو کې ورکوي.

۵. **دین:** کله نا کله څوک یو جنس واخلي خو پر هغه ساعت کې یې د قېمت ورکولو توان نه لري، نو له خرڅوونکي سره پدې خبره اتفاق وکړي چې د جنس قېمت یې په ذمه پاتې شو. دغه پاتې قېمت ته په فقهي اصطلاح کې دین ویل کېږي.

٦. **غبن فاحش:** غبن په اخیستلو او خرڅولو کې دوکې ورکولو ته ویل کېږي او (فاحش) زیات ته ویل کېږي یعنې په بیع او شراء کې زیاته دوکه ورکول.

په بیعه کې غبن فاحش هغې غبن ته ویل کېږي چې د قېمت اېښودونکو تر قېمت لاندې نه داخلېږي، مثلاً: که څوک یو قلــم چې اصلي قېمت یې پنځه افغانۍ وي په اووه افغانیو وپلوري نو دا کم غبن دی خو که یې په لس افغانۍ وپلوري نو دا فاحش (زیات) غبن بلل کېږي، ځکه چې که قېمت اېښودلو ته وړاندې کړل شي نو هېڅوک یې په لس افغانۍ نه قېمت کوي.

۷. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، ګروپي، پوښتنې او ځوابونه.

۸. **مرستندویه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| د زده‌کوونکو فعالیت | د ښوونکي فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| زده‌کـــوونکي دې د ســـلام ځواب ورکړي.<br><br><br><br><br><br><br>زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضري اخیستلو، د ټولګي له ښـــه تنظیمولـــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کـــورنی کـــار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>څوک کولای شي چې لاندې فقهي اصطلات تعریف کړي: مبیعه، نُقُـــود، کَیْلِـــي، وَزنِي، عَدَدِي، ذرْعِي، مشاع.<br>څوک کولای شي چې د مِثلِي، قِیمِي، مُتَقَارِبَه عَدَدِیَّات، مُتَفاوِته عَدَدِیَّات اصطلاحاتو په اړه معلومات ورکړي.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي او دوی د نوي لوست ته متوجه کوي.<br>د نوي لوست په اړه له دوی څخه پوښتنې کوي. | ۵ دقیقې |
| زده کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br><br>زده کوونکي دې په پټه خوله لوست ولولي.<br><br><br>ضـــعیف زده‌کـــوونکي دې لوست ولولي.<br><br><br>زده کوونکي یې دې عملـــي کړي. | د لوست وړاندې کول:<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ( د بیعې د فقهي اصطلاحاتو ادامـــه) دی پـــه تخته لیکي او د ذکر شویو اصطلاحاتو د زده کولو ارزښت او اهمیت تشریح کوي او زده‌کوونکو ته یې په اړه معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو تـــه وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څـــو د لوســـت یـــو یـــو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>لدې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست په زده‌کوونکو باندې پـــه مناســـب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملـــي کـــوي او د دې لپاره چې ښوونکی ښه مطمئن شي له زده‌کوونکو څخه د لوست پـــه اړه پوښـــتنې کوي. | ۲۵ دقیقې |
| زده‌کـــوونکي دې ځـــواب ورکړي. | **پوښتنې:**<br>أ- لاندې اصطلاحات تعریف کړئ:<br>۱- ثمن.<br>۲- قیمت.<br>۳- تاجیل.<br>۴- بایع.<br>۵- مشتري.<br>ب-د لاندې سمو جملو مخې ته د ( $\sqrt{}$ ) او د ناسمو جملو مخې تـــه د (×) نـــښه | ۱۰ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| | کېږدئ:<br>۱– تقسیط: د دَیْن (پور) په جلا جلا وختونو کې اداء کول دي. ( )<br>۲– دین هغه مال دی چې په ذمه ثابتیږي.( ) | |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>که څوک چا ته ووایي چې زه دغه مال تا ته په زر افغانۍ درکوم. هغه سړی ورته ووایي چې زما قبول دی، دلته د لومړي سړي خبره ایجاب او د دویم سړي خبره قبول ده، دا دواړه (ایجاب او قبول) د بیعې ارکان دي. زر افغانۍ هغه پیسې دي چې دوی دواړو پرې اتفاق کړی دی. دې ته ثمن مسمی ویل کېږي، خو که ددې شي اصلي قېمت له زرو روپیو څخه زیات او یا کم وي هغې ته د شي حقیقي قېمت ویل کېږي. او که مشتري ورته ووایي چې اوس پیسې نه لرم، بلکې وروسته یې درکوم، دې ته تاجیل ویل کېږي او که ورته ووایي چې په څو دفعو به دغه پیسې درکوم دې ته تقسیط ویل کېږي.<br>او که د دغه جنس اصلي قېمت پنځه سوه افغانۍ وي او ده په زرو افغانیو باندې پرې خرڅ کړی وي، دې ته غبن فاحش ویل کېږي. | زده کوونکي دې غوږ شي. |
| | **کورنی کار:**<br>د درس عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | زده کوونکي دې د لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

**پنځم لوست**:

**عنوان:** بيع

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. د بيعې له تعريف سره پوره آشنا شي.

۲. د بيعې حکم وپېژني.

۳. د بيعې د تړون لارې چارې وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. **د بيعې تعريف:** بيعه په اصطلاح کې د بايع او مشتري په خوښه پر مال باندې د مال له بدلولو څخه عبارت ده، خو کــه دغې بيعې د چا تر اجازې پورې اړه درلوده، موقوفه بيعه ورته ويل کېږي، لکه: د فضولي، راهن، مؤجر او داسې نـــورو بيعه.

که چېرې له عوضينو څخه کوم يو مال نه وي، نو بيا دا باطله بيعه ده، لکه څوک چې مرداره، شراب او يا ازاد انسان پر چا خرڅ کړي.

۲. **د بيعې د تړون طريقې:**

بيعه په دوو طريقو صورت موندلی شي، يو د قَوْل (ويلو) او بل د حال په ژبه. د قَوْل (ويلو) دا معنی لري چې د بيعې د تړون پر وخت اخيستونکی او خرڅوونکی سره وييناوې تبادله کړي، او د حال ژبه دې ته وايي چې يو سړی راشي عملاً د جــنس قيمت ورکړي او جنس تر لاسه کړي لکه څرنګه چې نن سبا په زياتره ملکونو کې دا طريقه مروجه ده.

۳. **د بيعې ارکان:**

د بيعې ارکان ايجاب او قبول دي لکه څرنګه چې په خولې تر سره کېږي همدارنګه د ليکنې له لارې هم صورت مومي.

۴. **د بيعې د مشروعيت دليل:**

بيع په کتاب الله او د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په سنتو او د امت په اجماع سره جائزه او مـــشروع او روا شـــوې ده، الله تعالی فرمايي: ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا [البقرة: ۲۷۵]﴾ ژباړه: او الله تعالی بيعه حلاله کړې او سود يې حــرام کـــړی دی.

همدارنګه بيعه په قولي او فعلي سنتو سره ثابته ده. پيغمبر صلی الله عليه وسلم پخپله پلورل او پيرودل کړي دي.

۵. **د بيعې د روا والي حکمت:** د بيعې د روا والي حکمت دا دی چې انسان له روا لارې کومې ستونزې او تکليفه پرته له نورو خلکو څخه خپل اړين او ضروري توکي تر لاسه کولای شي.

۶. **د بيعې صفت: بيعه په څلور ډوله ده:**

مباحه بيعه: دا هغه بيعه ده چې له فاسدو او باطلو شرطونو څخه خالي وي.

مکروه بيعه: دا هغه بيعه ده چې د مجاور امر له سببه مکروه وي، لکه: بيعه د جمعې د آذان په وخت کې.

حرامه بيعه: دا هغه بيعه ده چې د ګناه د ارتکاب سبب ګرځي، لکه: په شراب خوړونکي باندې د شـــرابو خرڅـــول، ځکـــه پـــدې ډول بيعه کې د ګناه په کار کې د ګناه کوونکي سره مرسته کول دي.

واجب بيعه: دا هغه بيعه ده چې د اضطرار په حالت کې په انسان باندې واجبېږي، لکه: د مخمصې په حالت کې د خـــوراک او څښاک د توکو اخيستل.

۷. **د بیعې د تړون پر وخت څو شیان باید موجود وي:**

بایع یا د بایع وکیل

مشتري یا د مشتري وکیل

مبیعه

د بیعې تړون

د بایع او مشتري رضایت

۸. **د تدریس تګلاره:** تشریحي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

۹. **مرستندویه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | مقدمه:<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>څوک کولای شي چې لاندې فقهي اصطلات تعریف کړي: غَبن فَاحِش، دیْن، تقْسِیط، تاجیل.<br>څوک کولای شي چې د قیمت، ثمن مسمی، رُکنُ الْبَیْع اصطلاحاتو په اړه معلومات ورکړي.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي او دوی نوي لوست ته متوجه کوي.<br>د نوي لوست په اړه له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکوي.<br><br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ( بیع) دی په تخته لیکي او د بیع د تعریف، د بیعې د ډولونو او حکم په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي چې د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي، او ښوونکی ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله لوست ولولي.<br>ضعیف زده کوونکي دې لوست ولولي.<br><br><br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>لاندې پوښتنو ته ځوابونه وواياست:<br>۱. د دې لوست اصطلاحات بیان کړئ.<br>۲. د بیعې حکم څه دی؟<br>۳. د بیعې رکن څه دی او په څه شی بیعه ترسره کیږي؟<br>لاندی جملی په مناسبو کلماتو بشپړې کړئ:<br>بیعه په لغت کې: ..................او شرعاً:...............................ته وايې. | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. او هم دې خالي ځایونه په مناسبو کلماتو ډک کړي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>بیعه په لغت کې د مال بدلول دي په مال باندې او د فقهې په اصطلاح کې د بایع او مشتري په خوښه د مال بدلولو ته په مال باندې بیعه ویل کیږي. او حکم یې په مبیعه کې د مشتري او په ثمنو کې د بایع د ملکیت اثبات دی. د بیعې ارکان ایجاب او قبول دی. بیعه لکه څرنګه چې د خبرو له لارې تر سره کیږي، د فعل له لارې هم ترسره کیږي چې دې ته د تعاطی بیعه هم ویل کیږي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي. |
| | **کورنی کار:**<br>د دې لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | زده‌کوونکي دې د لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

**شپږم لوست**:

**عنوان**: د بیعې شرطونه

**وخت**: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې**: زده‌کوونکي باید:

۱. د شرط په معنی وپوهېږي.

۲. د بیعې شرطونه وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د دې لپاره چې د بایع او مشتري تر منځ کومه شخړه رامنځ ته نشي، په بیعه کې د هر ډول دوکې او د بیعې د منځه تللو د اسبابو مخنیوی وشي او له بل لوري د عاقدینو ګټې په ښه توګه تامین شي، نو فقهاوو د بیعې لپاره څو ډوله شرطونه لازم کړي دي، چې په لاندې ډول بیانېږي:

د انعقاد شرطونه، د صحت شرطونه، د لزوم شرطونه، د خیار شرطونه او داسې نور.

۲. **شرط**: شرط په شروط او اشراط سره جمع کېږي او په عربي ژبه کې د یو شي تر بل شي پورې تړلو ته شرط ویل کېږي. پدې معنی که لومړی شی پیدا شو، دویم شی به هم پیدا کېږي او که لومړی شی پیدا نه شو، نو د دویم شي وجود به هم ناشونی وي یا په بل عبارت هغه څه چې د بل شی وجود د هغه په وجود پورې تړلي وي، خو د هغه شي له حقیقت څخه بهر وي، لکه: کیلی د قلف د خلاصولو لپاره.

۳. **شروط الانعقاد:** په بیعه کې د انعقاد شرطونه له هغو شرطونو څخه عبارت دي چې پرته له دې شرطونو څخه بیعه نه تړل کېږي او که و تړله شي هم نو دا باطله بیعه ده.

۴. **شروط النفاذ:** دا هغه شرطونه دي چې که په بیعه کې موجود نه وي، بیعه موقوفه بلل کېږي او بیا دا لازمي ده چې بیعه به د واک د خاوند په اجازې صورت مومي، لکه: که څوک د بل چا لپاره کوم جنس واخلي او مشتري د هغه سړي (چې دا شی یې ورته اخیستي دي) نه وکیل وي او نه وصي وي، نو دا بیعه د هغه چا تر اجازې پورې موقوفه ده چې د هغه لپاره دا جنس اخیستل شوی دی.

۵. **د صحت شرطونه:** دا هغه شرطونه دي چې د بیعې پر وخت کې یې نشتوالی د بیعې د فساد لامل ګرځي، لکه: څوک چې په چا مجهول (نامعلوم) جنس وپلوري. ځکه چې مبیعه مجهوله ده، نو باید له مبیعې څخه جهالت رفع او جنس معلوم کړل شي تر څو بیعه صحت ومومي.

٦. **شروط اللزوم:** د لزوم شرطونه هغه شرطونه دي چې د تحقق په صورت کې یې بیعه پر مشتري لازمېږي. په مبیعه کې د مشتري او په ثمنو کې د بایع ملکیت ثابتېږي، که چېرې له دې شرطونو څخه یو شرط هم موجود نه وي مشتري د اختیار خاوند دی چې د بیعې تړون مني او یا یې باطلوي، لکه: څوک په داسې یو شي واخلي چې لیدلی یې نه وي، نو په دې صورت کې که دا شرط ولګوي چې دا بیعه زه منم خو په دې شرط چې زه یې ووینم او که یې ونه لګوي او په مبیعه راضي هم شي، تر څو یې چې مبیعه لیدلې نه وي، خیار رؤیت پاتې دی، نو په دې صورت کې بیعه په خپل ذات کې صحیح ده، خو د مشتري تر لیدلو پورې معلقه ده کله چې مشتري مبیعه ولیده له لیدلو څخه وروسته دا حق لري چې یا یې واخلي او یا بیعه فسخه کړي.

۷. **د بیعې مجلس:** د بیعې مجلس د بیعې له هغه مجلس څخه عبارت دی چې اخیستونکی او خرڅوونکی (بایع او مشتري) د بیعې په اړه پکې خبرې کوي. یاده دې وي چې د تیلیفون یا خط لېږلو په واسطه سره هم بیعه صورت موندلی شي.

یادونه: د بیعې د تړون لپاره کوم معین الفاظ نشته خو باید داسې الفاظ وکارول شي چې په عرف کې اخیستل او خرڅول ورڅخه افاده کېږي.

۸. **د تدریس تگ لاره:** تشریحي، مناقشوي، گروپي، پوښتنې او ځوابونه.

۹. **مرستندویه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولگي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار گوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>څوک کولای شي چې بیعه تعریف کړي؟<br>څوک کولای شي چې د بیعې حکم بیان کړي او دا ووایي چې بیعه په کومو لارو سره کېدای شي<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انگېزه پیدا کوي. نوی لوست ته یې متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه یوه یا څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ( د بیعې شرطونه) دی په تخته لیکي او د شرط د تعریف، د بیعې د شرطونو د ډولونو په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او هغه ځایونه په نښه کړي چې دوی ورباندې نه پوهېږي هغه .<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراگراف په لوړ آواز ولولي او نورو زده‌کوونکو ته دنده ورکوي تر څو د هغوی خطاگانې اصلاح کړي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي او د دې لپاره چې ښه ډاډمن شي له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ.<br>۱. د بیعې شرطونه په څو ډوله دي؟ بیان یې کړئ<br>۲. د بیعې د انعقاد شرطونه ووایاست.<br>۳. د بیعې د نفاذ شرطونه کوم دي؟<br>۴. د بیعې د صحت شرطونه بیان کړئ. | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>شرط په لغت کې علامې او نښې ته وايي او په اصطلاح کې هغه شي ته ویل کېږي چې په هغه پورې د بل شی وجود تړلی او بې له هغه څخه نه ترسره کیږي. د بیعې شرطونه په څلور ډوله دي: د انعقاد شرطونه، د نفاذ شرطونه، د صحت شرطونه او د لزوم شرطونه. | زده‌کوونکي دې غوږ شي. |
| | **کورنی کار:**<br>د دې درس عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | زده‌کوونکي دې د لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## اووم لوست:

**عنوان:** د بيعې ډولونه

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

د بيعې له ډولونو سره پوره آشنا شي.

د بيعې حکمونه وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. شرطونه د بيعې لپاره بنسټيز حيثيت لري، د بيعې جواز او عدم جواز تر شرطونو پورې تړلی دی.

بيعه د جواز او عدم جواز په اعتبار سره په دوه ډوله ده: جائزه بيعه او ناجائزه بيعه. جائزه بيعه صحيحې او نافذې بيعې ته ويل کېږي او ناجائزه بيعه هغې بيعې ته ويل کېږي چې د صحت، انعقاد او نفاذ له شرطونو څخه کوم شرط په کې له منځه تللی وي.

۲. جايزه بيعه په درې ډوله ده: صحيحه نافذه لازمه، صحيحه نافذه غير لازمه، صحيحه موقوفه.

- صحيحه نافذه لازمه بيعه: صحيحه نافذه بيعه هغې بيعې ته ويل کېږي چې د اصل او وصف دواړو له مخې صحيح وي. نه د چا حق ورپورې تړلی وي او نه له خيارونو څخه کوم خيار په کې موجود وي.

اصل: لکه: بايع، مشتري، مبيعه، ثمن او د بيعې صيغه.

وصف: له وصف څخه هغه خارجي صفتونه مراد دي چې د بيعې تړون يې تقاضا نه کوي.

- صحيحه نافذه غير لازمه بيعه: دا بيعه هغې روا بيعې ته ويل کېږي چې د کوم چا حق ورپورې تړلی نه وي، خو د خياراتو له جملې څخه کوم خيار په کې موجود وي. په دې بيعه کې مبيعه د بايع له ملکيت څخه نه خارجېږي او د مشتري په ملکيت کې نه داخلېږي. تر هغه وخته چې خيار موجود وي او د ثمنو حکم هم همداسې دی.
- صحيحه موقوفه بيعه: موقوفه بيعه د نافذې بيعې ضد ده. دا هم صحيح او جائزه بيعه ده، خو په مبيعه کې ملکيت پوره نه ثابتوي، بلکې د بل چا د حق له امله په مبيعه کې د ملکيت پوره ثابتېدل ځنډول کېږي خو لغوه کېدل يې مناسب نه دي، ځکه هر کله چې بيعه له خپلو شرطونو سره سمه په خپل ځای کې صورت ومومي بيا يې لغوه کول مناسب کار نه دی.

۳. ناجائزه بيعه په درې ډوله ده: فاسده، باطله او مکروه بيعه.

۱. فاسده بيعه: فاسده بيعه د صحيح بيعې ضد ده. جمهور فقهاء فاسده او باطله دواړه بيعې يو ډول بولي، مګر حنفي فقهاء فاسده او باطله بيعه بېلې بېلې بيعې ګڼي.

فاسده بيعه هغې بيعې ته ويل کېږي چې په اصل کې جائزه وي خو د وصف له حيثه صحت نه لري، لکه: مبيعه مجهوله وي او يا په ثمنو کې داسې جهالت موجود وي چې د شخړو او لانجو لامل ګرځي، لکه څوک چې پر چا باندې د پسونو له رمې څخه يو نامعلوم پسه وپلوري، نو اخيستونکی او خرڅوونکی (بايع او مشتري) دواړه د بيعې د فسخه کولو حق لري.

څرنګه چې فاسده بيعه په اصل کې مشروع ده، نو ځکه ملکيت پرې ثابتېږي او مشتري کولای شي چې مبيعه قبض کړي، خو کله چېرې مشتري مبيعه قبض کړه او تجارت ته يې وړاندې کړه، نو د ګټې خوراک يې ورته جواز نه لري، ځکه چې دا ګټه له ممنوع لارې څخه لاس ته راغلې ده.

۲. باطله بیعه: باطله بیعه هغې بیعې ته ویل کېږي چې مبیعه داسې شی وي چې ذات او وصف دواړه یې شرعاً ممنـــوع وي، یعنې ذات یې هم په شریعت کې مبیعه نه بلل کېږي او خارجي صفتونه یې هم غیر مشروع وي یا په بل عبـــارت ســـره باطله بیعه هغې بیعې ته ویل کېږي چې په رکن کې یې خلل واقع شوی وي

په حنیفي فقه کې د بیعې ارکان ایجاب او قبول ښودل شوي دي، خو ځینې علماء د بیعې محل هم د بیعې رکن ګڼي، یعنـــې هغه څه چې بیعه پرې منعقده شوې وي، لکه مبیعه او ثمن که چېرې مبیعه او یا ثمن مال نه و دې بیعې ته باطلـــه بیعـــه ویـــل کېږي چې نه په مبیعه کې ملکیت ثابتوي او نه په ثمنو کې، ځکه چې له سره بیعه منعقده شوې نه ده. که چېرې څوک پـــه باطله بیعه اخیستل شوې مبیعه قبض کړي دا مبیعه له ده سره امانت ده. کله نا کله ځیني مصنفین د باطلې بیعې پـــر ځـــای د فاسدې بیعې نوم اخلي، خو مراد ورڅخه باطله بیعه وي، لکه د هدایې او قدوري مؤلفین چې په فاسده بیعه کې یې د بـــاطلې بیعې مثالونه ذکر کړي دي.

✓ د باطلې او فاسدې بیعې تر منځ توپیر: هغه بیعه چې په رکن کې یې خلل واقع شوی وي، باطله بیعه ده او هغه بیعه چـــې په شرطونو کې یې خلل واقع شوی وي فاسده بیعه ګڼل کېږي.

۳. مکروه بیعه: مکروه بیعه هغې بیعې ته ویل کېږي چې په اصل او وصف دواړو کې مشروع وي خو د یو بل ناروا عمـــل د ملګرتیا له امله مکروه ګرځېدلې وي لکه د جمعې له اول آذان څخه وروسته اخیستل او خرڅول، یا د بل چا د بیعـــې د پاسه بیعه کول چې دا ډول بیعې په احادیثو کې منع شوې دي.

۴. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، ګروپي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

۵. **مرستندویه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي لـــه ښـــه تنظیمولـــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروســـته د دوی کـــورنی دنـــده ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>څوک کولای شي چې شرط تعریف کړي؟<br>څوک کولای شي چې د بیعې د انعقاد شرطونه ووایي؟ څـــوک د بیعـــې د صـــحت شرطونه بیانولای شي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او له دوی څخه د نوي لوست په اړه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ســـلام ځواب ورکړي.<br><br>زده‌کـــــــــوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ( د بیعې ډولونه) دي په تخته لیکي او د بیعـــې ډولونو په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو تـــه وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او هغه ځایونه چې دوی وربانـــدې نـــه پوهېږي په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف | زده‌کـــــــوونکي دې د ښوونکي خبرو تـــه غـــوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې پـــه پټـــه خوله لوست ولولي. |

| | | |
|---|---|---|
| | په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي.<br>او ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | ضعیف زده کوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>۱. بیعه څو ډولونه لري؟<br>۲. نافذه بیعه کومه بیعه ده؟<br>لاندې جملې بشپړې کړئ:<br>۱. باطله بیعه: دا هغه بیعه ده چې ..............................................<br>۲. فاسده بیعه: د اهغه بیعه ده چې ............................................ | زده کوونکي دې ځواب ورکړي. او هم دې نیمګړې جملې پوره کړي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>بیعه د حکم له نظره پر پنځه ډوله ده:<br>۱. صحیحه نافذه لازمه بیعه<br>۲. صحیحه نافذه غیر لازمه بیعه<br>۳- صحیحه موقوفه بیعه<br>۴- فاسده بیعه<br>۵. باطله بیعه | زده کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د بیعې انواع او احکام په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | زده کوونکي دې له درسي کتاب څخه د بیعې انواع او ډولونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## اتم لوست:

**عنوان:** د بيعې شرطونه

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. د بيعې ډولونه وپېژني.

۲. د هرې يوې بيعې له تعريف او مثالونو سره پوره آشنا شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

بيع او شراء (خرڅول او اخيستل) به له لاندې حالتونو څخه خالي نه وي:

۱. يا به يو جنس پر بل جنس باندې پلورل شوی وي چې دې ته مقايضه بيعه ويل کېږي، لکه څوک چې يو جوړ بوټ په يوه موبايل باندې ورکړي.

۲. يا به جنس د پيسو په مقابل کې پلورل شوی وي چې دې ته مطلقه بيعه او بيع بات ويل کېږي، لکه څوک چې يو جريب ځمکه د يو لک افغانيو په بدل کې وپلوري.

۳. يا به دَينً (پور) د جنس په بدل کې پلورل شوی وي يعنې دا چې پيسې به مخکې ورکړل شوې وي او مبيعه به وروسته په معلومه نيټه قبض کوي چې دې ته سَلَم ويل کېږي، لکه څوک د شل منه غنمو په مقابل کې دوه زره افغانۍ مخکې ورکړي او بيا شل منه غنم وروسته په معلومه نيټه قبض کړي.

۴. يا به پيسې د نورو پيسو په بدل کې پلورل شوې وي چې دې ته د صرف بيعه ويل کېږي. (انس الفقهاء)

نو ويلای شو چې بيعه د مبيعې په اعتبار سره په څلور ډوله ده چې په لاندې ډول په تفصيل سره بيانېږي:

۱. مطلقه بيعه: دا هغه بيعه ده چې له کوم قيد څخه پرته ذکر شي او له ځان سره نور قيدونه ونه لري. دا بيعه د جنس خرڅول دي په مطلقو ثمنو (لکه سپين زر، سره زر، بانک نوټونه او فلزی پيسې). د دې بيعې حکم دا دی چې له عقد څخه وروسته په عاجله توګه بيعه لازمېږي او د بيعې له جانبينو څخه يو هم نشي کولای چې مطلقه بيعه فسخ کړي او يا مبيعه معطله کړي، خو که چېرې په عرف کې تاخير رواج و نو بيا يې تاخير روا دی، مګر بيا هم د مشتري ملکيت په مبيعه کې ثابت دی.

۲. د صرف بيعه: د صرف لفظ په عربي لغت کې په ډېرو معناګانو راغلی دی، لکه: د يو چا له خپلې ارادې څخه مخ اړول، خيرات ورکول، زيادت، نقلول او داسې نور. د دې لفظ اسم فاعل صيرفي او صراف راځي او په اصطلاح کې پر پيسو باندې د پيسو خرڅولو ته د صرف بيعه ويل کېږي او دا کوم توپير نه لري چې که پيسې اصلي وي لکه سره زر او سپين زر او يا اصطلاحي وي، لکه د نن ورځې مروجې د اوسپنې او کاغذونو پيسې.

دې ډول بيعې ته د صرف بيعه ځکه ويل کېږي چې پدې بيعه کې هم پيسې له يو لاس څخه بل لاس ته نقلېږي.

د صرف د بيعې د جواز حکمت: د دې بيعې له جواز څخه حکمت د مسلمانانو خير غوښتنه ده تر څو هر مسلمان په آسانۍ سره وکولای شي چې يو جنس پيسې په بل جنس پيسو باندې بدلې کړي.

۳. د مقايضې بيعه: مقايضه له (قَيَضَ) څخه اخيستل شوې چې عوض ته ويل کېږي او دې بيعې ته ځکه مقايضه ويل کېږي چې د يو جنس په عوض کې بل جنس ورکول کېږي، څنګه چې مقايضه هم د بيعو له ډولونو څخه يو ډول بيعه ده، نو بايد د بيعې ټول شرطونه په کې وجود ولري.

۴. د سلم بیعه: د سلم لفظ په عربي ژبه کې د نفقه کولو او داسې نورو معناګانو راغلی دی او په اصطلاح کې د مؤجل بیعه ده په معجل باندې (د یو داسې معلوم شي خرڅول چې د بیعې پر وخت کې موجود نه وي د داسې شي په بدل کې چې عاجل (موجود) وي. په دې بیعه کې مبیعه وروسته په ټاکل شوې نېټه تسلیمیږي، خو ثمن د بیعې د عقد په وخت کې ورکول کېږي.

د سلم بیعه په کتاب الله، د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په سنتو او د امت په اجماع سره روا شوې ده.

د سلم د بیعې د مشروعیت حکمت: د مسلمانانو د حرج او تکلیف د له منځه وړلو په غرض د سلم بیعه روا شوې ده. سره له دې چې د قیاس له نظره ناروا ده، ځکه چې د غیر موجود شی پلورل په کې صورت مومي، خو دا چې یو بزګر اړ او محتاج دی او له بلې خوا نه په لاس کې نغدې پیسې لري او نه غله لري چې هغه وپلوري او خپلې اړتیاوې پرې پوره کړي، نو دې ته اړ کېږي چې له چا څخه د غلې دانې د رسېدلو تر وخته پیسې واخلي او خپلې اړتیاوې پرې پوره کړي او بیا راتلونکې غله په هغه معلوم مقدار او صفت سره چې د عقد په وخت کې یې معلومه کړې، د پیسو خاوند ته پوره ورکړي.

داسې هم کېدای شي چې یو څوک اوس پیسې په لاس کې لري خو په راتلونکې کې بیا د غلې اخیستلو ته اړ کېږي او دا وېره ورسره وي چې کېدای شي د غلې د رسېدلو تر وخته دغه پیسې زما له لاس څخه ووځي، نو اوس یو بزګر ته وایي چې دغه پیسې واخله او کله چې ستا غله ورسېده دومره او د دې صفت لرونکې غله به ماته راکوې.

د ثمنو په اعتبار سره د بیعې ډولونه:

که کوم تاجر یو جنس وروسته له اخیستلو څخه په بل چا باندې پلوري نو د ده دا خرڅول به له لاندې حالتونو څخه خالي نه وي:

یا به یې په کمه ګټه خرڅوي چې دې ته د مرابحې بیعه ویل کېږي.

یا به یې په خپل سر (هغه قېمت پلوري چې ده پرې اخیستی دی) چې دې ته د تولیې بیعه وایي.

یا به یې په لږ څه تاوان خرڅوي چې دې ته وضیعه بیعه وایي.

یا به یې په داسې قېمت خرڅوي چې بایع او مشتري پرې اتفاق ته ورسېږي، چې دې ته د مساومې یا مزایدې بیعه ویل کېږي.

نو د ثمنو په اعتبار سره بیعه په څلور ډوله ده:

۱. د مرابحې بیعه: د مرابحې بیعه د امانت حیثیت لري، ځکه چې په دې بیعه کې جنس له لږ ګټې سره په هغه قېمت باندې خرڅول کېږي چې ده ته تمام شوی وي. هر کله چې پلورونکی له پورتنۍ دعوی سره جنس خرڅوي، په داسې حال کې چې نه شاهدان شته او نه ورته څوک قسم ورکوي، نو ده ته په کار ده چې په بیعه کې خپل ځان له خیانت څخه وساتي. او که چېرې جنس د مرابحې په نوم وپلوري او بیا په کې د قېمت ډېر زیادت او یا دروغ ثابت شول، نو د مبیعې ردول واجب دي. په مرابحه بیعه کې راس المال یعنې هغه اندازه قېمت چې ده پرې جنس لومړی ځل اخیستی دی، لومړنی ثمن بلل کېږي.

۲. د تولیې بیعه: دا هغه بیعه ده چې جنس په خپل سر باندې (په کوم قېمت چې اخیستل شوی) خرڅول کېږي لکه چې چا یو قلم په لسو افغانیو اخیستی وي او بیا یې په لسو افغانیو وپلوري. دې بیعې ته ځکه تولیه بیعه وایي چې بایع مشتري خپل نائب ګرځوي او مشتري بایع ته هغه قېمت ورکوي چې هغه ته پرې مبیعه تمامه شوې ده او په ده باندې دا اعتماد او پوره باور کوي چې را سره هېڅ خیانت نه کوي. خو که کوم خیانت په کې څرګند شو. نو مشتري د مبیعې د بېرته ورکولو حق لري او که په مبیعه کې کوم قدیم عیب را څرګند شو نو په قدیم عیب مبیعه نه شي ردولی.

د مرابحې او توليې بيعې د مشروعيت حکمت: دا دواړه بيعې د ضرورت او اړتيا له مخې مشروع شوې دي، ځکه ډېر وخت يو سړی په تجارتي کړنو کې تجربه نه لري، نو له بل سړي څخه جنس په داسې قېمت اخلي چې اصل قېمت هم ورکــوي او ورسره يو څه ګټه هم ورکوي، لکه د مرابحې بيعه او يا ورته هېڅ ګټه نه ورکوي لکه د توليې بيعه.

۳. وضيعه بيعه: وضيعه په عربي ژبه کې کمولو ته ويل کېږي او دې بيعې ته ځکه وضيعه بيعه ويل کېږي. چې د خرڅولو پر وخت د راس المال (اصلي قيمت) څخه څه اندازه کمېږي او په کم قېمت باندې خرڅول کېږي. لکه يو سړی چې بــل سړي ته وايي: دا جنس چې ما ته په سل افغانۍ تمام شوی پر تا باندې يې په نوي افغانيو باندې پلورم. دې ډول بيعې تــه مخاسره، مواضعه، محاطه او حطيه بيعه هم ويل کېږي.

د وضيعې بيعې حکم: د دې بيعې حکم د مرابحې د بيعې په څېر دی که چېرې خيانت په کې څرګند شو نو مشتري د ردولو حق لري.

۴. د مساومې بيعه: دا هغه بيعه ده بايع هغه قېمت چې ده پرې مبيعه اخيستې ده، نه په ګوته کوي، بلکې د نوي قېمــت پــه ټــاکلو سره دواړه صلاح شي دې ته مزايده بيعه هم ويل کېږي.

که چېرې بيعې د مساومې له لارې صورت ومونډ او شفيع چوپ ناست و، د شفيع د شفعې حق ساقطېږي. همدارنګه که چا له يوه سړي څخه کوم جنس د مساومې په بيعه واخيست او بيا يې پر هغه جنس دعوی وکړه چې دا زما دی، نو د ده دعــوی نه اورېدل کېږي. همدارنګه د مساومې په بيعه کې د خيانت خيار هم نه ثابتېږي.

**د تدريس تګ لاره:** تشريحي، يو کسيز، پوښتنې او ځوابونه.

**مرستندويه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخيستلو، د ټولګي لــه ښــه تنظيمولــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکيني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>بيعه د حکم له مخې په څو ډوله ده؟<br>د صحيحې نافذې لازمې بيعې او صحيحې نافذې غير لازمې بيعې تــر مــنځ فــرق څــوک بيانولای شي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پيدا کوي، دوی نــوي لوست ته متوجه کوي او له دوی څخه د نوي لوست په اړه پوښتنې کوي. | زده کوونکي دې د ســلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ( د بيعې د ډولونو دوام) دی په تختــه ليکــي، د ثمنو له نظره او د مبيعې له نظره د بيعې ډولونه تشريح کوي او په اړه يې زده‌کوونکــو ته معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په ټيټه خوله ولولي، هغه ځايونه چې دوی ورباندې نه پوهېږي په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعيفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست يو يو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکو ته لوست په مناســب ډول تــشريح کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په ټيټه خوله لوست ولولي.<br>ضــعيف زده‌کــوونکي دې لوست ولولي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کـــوي او ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست پـــه اړه څـــو پوښـــتنې کوي. | زده‌کوونکي یې دې عملـــي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>أ- لاندېنیو پوښتنوته ځوابونه ووایاست:<br>۱- د مبیعې له نظره بیعه په څو ډوله ده؟<br>۲- د سلم بیعه کومه بیعه ده؟<br>۳- د ثمنو له نظره بیعه په څو ډوله ده؟<br>۴- د مرابحې بیعه کومه بیعه ده؟<br>ب- د لاندېنیو سمو جملو مخې ته د ( √ ) او ناسمو جملو مخـــې تـــه د (× ) نـــښه کېږدئ:<br>۱. مقایضه بیعه: دا د جنس بیعه ده په جنس باندې.( ).<br>۲. د تولیې بیعه: په خپل سر د یوه شي خرڅولو ته دتولیې بیعه وایي. ( ).<br>۳. د وضیعې بیعه: په معینه ګټه باندې د مال پلورلو ته د وضیعې بیعه وایي.( ). | زده‌کـــوونکي دې ځـــواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>بیعه د مبیعې له نظره په څلور ډوله ده:<br>۱. مطلقه بیعه<br>۲. د صرف بیعه<br>۳. مقایضه بیعه<br>۴. د سلم بیعه<br>بیعه د ثمنو له نظره په څلور ډوله ده:<br>۵. مرابحه<br>۶. تولیه<br>۷. وضیعه<br>۸. مساومه | زده‌کوونکي دې غوږ شـــي او د خپل ښوونکي خبـــرې دې په ډېر غور سره واور. |
| | **کورنی کار:**<br>د بیعې اقسام د مبیعې او ثمنو په نظر کې نیولو سره په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | زده‌کـــوونکي دې د بیعـــې ډولونه د مبیعې او ثمنو پـــه اعتبار سره په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## نهم لوست:

**عنوان:** خیار (د خیار شرط تعریف او احکام يې)

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. په بیعه کې خیارونه وپېژني.

۲. د خیار شرط له تعریف او حکم سره اشنا شي.

۳. د خیارونو د مشروعیت حکمت وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د اسلام سپېڅلی دین د ریښتینولي، صداقت او د ژوند په کړو وړو کې د شفافیت پر بنسټ ولاړ دی. له دې امله د فقهي معاملاتو اساس هم په شفافیت او له هر ډول خیانت او دوکې څخه په ډډه کولو ولاړ دی د دې لپاره چې د بیعې او شراء په وخت کې بایع او یا مشتري له زیان او ضرر سره مخ نه شي، نو شریعت په بیعه (پلورلو او پیرودلو) کې خیارات مشروع او روا کړي دي.

د خیار مشهورو ډولونه څلور دي: خیار شرط، خیار رؤیت، خیار عیب او خیار مجلس.

۱. خیار شرط: خیار د خوښې او اختیار معنا لري، یعنې کله چې عاقدین عقد وتړي، نو دوی هر یو دا حق لري چې یا بیعه سم له لاسه قبوله کړي او یا د غور کولو لپاره وخت وغواړي. نو که د فکر او غور کولو لپاره يې د وخت غوښتنه وکړه دې ته خیار شرط ویل کېږي. په خیار شرط کې د حکم اضافت شوی دی سبب ته لکه چې مونږ وایو صلاة الظهر. یعنې د ماسپښین د لمانځه سبب ظهر دی.

۲. خیار شرط په درې ډوله دی:

- لومړی: که د خیار موده له دریو ورځو څخه زیاته و ټاکل شوه، خو معلومه نه وه دا خیار په اتفاق سره فاسد دی. لکه چې مشتري ووایي دا جنس مې واخیست په دې شرط چې زه به له دریو ورځو څخه زیاتې ورځې اختیار لرم.
- دویم: که د خیار موده درې یا له دریو ورځو څخه کمه وټاکل شوه، دا خیار په اتفاق سره جائز دی، لکه چې مشتري ووایي ما دا جنس واخیست په دې شرط چې ما ته به تر دریو ورځو پورې اختیار وي.
- دریم: که د خیار موده له دریو ورځو څخه زیاته وټاکل شوه خو معلومه وه چې یوه میاشت یا دوې میاشتې اختیار لرم په دې کې اختلاف دی. لکه چې اخیستونکی ووایي: زه به له دریو ورځو څخه زیات تر یوې میاشتې یا دوو میاشتو اختیار لرم، نو دا اختیار د ابو حنیفة (رح) په وړاندې فاسد دی، خو د امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله په وړاندې روا دی.

خیار شرط له نورو خیارونو څخه ځکه مخکې ذکر شو چې دا خیار عام دی د بایع او مشتري دواړو حق کېدلای شي. د دې پر خلاف خیار عیب او خیار رؤیت یوازې د مشتري حق دی.

۳. د خیار شرط د روا والي دلیل: یو صحابي چې حبان بن منقذ نومېده، په اخیستلو کې زیات دوکه کېده. خپله کیسه يې پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته وکړه. پیغمبر صلی الله علیه وسلم ورته وویل: کله چې څه شی اخلې، نو خرڅوونکي ته وایه: دوکه به نه راکوې او زما لپاره به درې ورځې اختیار وي.[۳]

---

[۳]– نصب الرایة، ج: ۴، ص: ۱۵.

۴. **د خیار شرط موده:** د امام ابوحنیفة (رح) په نزد د خیار شرط موده یوازې تر دریو ورځو پورې ده او له دریــو ورځــو څخــه زیاته موده نه لري، ځکه چې په حدیث کې یې موده درې ورځې ټاکل شوې ده، او دا درې ورځې منصوصي دي. خــو د امــام ابو یوسف او امام محمد په وړاندې د خیار شرط د مودې ټاکل تر عاقدینو پورې اړه لري. دوی چې پــه هــر شــومره مــوده راضي شول، صحت لري سره له دې دریو ورځو څخه زیاته هم وي، ځکه دا معلاملات دي او د معلاملاتو بناء پــه عــرف او عادت او د عاقدینو تر رضایت پورې تړلې ده، دا هم کېدای شي چې د انسان خوښه له دریو ورځو څخه په زیاته مــوده بانــدې وشي.

۵. **د خیار شرط اثر:** خیار شرط دوه اثره لري، یو یې اتفاقي او بل یې اختلافي دی:

۱. **اتفاقي اثر:** د خیار شرط په اېښودلو سره د بیعې لزوم له منځه ځي او د خیار د خاوند تر خوښې پورې معلقه کېــږي. کــه یــې خوښه شوه، نو خپل رضایت به ښکاره کړي او که یې خوښه نه شوه، نو باید په ټاکلې موده کې د خپل نه رضــایت څرګندونــه وکړي او که موده تېره شوه بیعه لازمېږي.

که د اختیار خاوند بیعه فسخه کوي، نو باید د خیار په موده کې یې فسخه کړي او هم مقابل لوری په فسخه باندې خبر کړي.

۲. **اختلافي اثر:** که چېرې خیار د بایع او مشتري دواړو لپاره شرط کړای شوی و نو د امام ابو حنیفه (رح) په وړاندې پــه مبیعــه کې د مشتري ملکیت نه ثابتېږي او په ثمنو کې د بایع ملکیت نه ثابتېږي، خو امام ابویوسف او امام محمد رحمهمــا الله وایــي چې ثمنې د بایع په ملکیت کې داخلېږي.

٦. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

۷. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کــورنی کــار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د مبیعې له نظره بیعه په څو ډوله ده؟<br>د ثمنو له نظره بیعه په څو ډوله ده؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کــوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او له دوی څخه د نوي لوست په اړه پوښتنې کوي. | زده‌کــوونکي دې د ســلام ځواب ورکړي.<br>زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې خِیَار ( د خیار شرط تعریف او احکام یې) دی په تخته لیکي، د خیار شرط لغوي او اصطلاحي تعریف، د روا والي حکمت یې، حکم یې، د خیار شرط د موده، د هغه د ساقطېدلو او له منځه تللو، په هغه باندې د بیعې د فسخه کولو د شرطونو په اړه زده کوونکو ته لازم معلومات ورکوي له دې څخه وروسته زده کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفو زده کوونکو غواړي چې د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده کوونکو باندې عملي کوي، او ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br>زده کوونکي دې په پټه خوله لوست ولولي.<br><br>ضعیف زده کوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>۱. خیار شرط څه ته وایي؟<br>۲. خیار شرط کله ساقطیږي؟<br>۳. د خیار شرط وخت څومره دی؟<br>۴. په خیار شرط باندې د بیعې د فسخه کولو شرطونه کوم دي؟ | زده کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>خیار په لغت کې خوښولو، ټاکلو او واک لرلو ته وایي. په اصطلاح کې هغه واک او اختیار دی چې یو لوری او یا دواړه لوري یې د یوې معلومې مودې لپاره د بیعې د منلو او نه منلو په هکله د ځان لپاره ساتي. خیار شرط د خلکو د ضرورت او اړتیا د پوره کولو له امله روا شوی دی، چې خلکو ته د فکر او مشورې وخت په لاس ورشي او د ضرر مخه ونیول شي. په شریعت کې خیار شرط ایښودل جائز دي، او د اختیار د خاوند مال د هغه له ملکیت څخه نه خارجیږي او د مقابل لوري په ملکیت کې نه داخلیږي تر څو خیار شتون ولري.<br>د امام ابوحنیفه رحمه الله په وړاندې خیار شرط تر دریو ورځو پورې او یا له دریو ورځو څخه کم صحیح کېږي خو له دریو ورځوڅخه زیات جواز نه لري. او امام ابو یوسف او امام محمد رحمهما الله بیا وایي: که چیرته یې یوه معلومه موده شرط کړې وي، که هغه له دریو ورځو څخه زیاته هم وي جواز لري. | زده کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د خیار شرط په هکله یوه مقاله ولیکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي. | زده کوونکي دې له نورو فقهي کتابونو څخه په ګټه اخستلو سره د خیار شرط په اړه یوه مقاله ولیکي. |

**لسم لوست**:

**عنوان:** خیار رؤیت(دلیدلو خیار)

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. د رؤیت خیار وپېژني

۲. د رؤیت د حق حکم په سمه توګه وپېژني.

۳. د رؤیت د خیار له ځینو مسائلو سره اشنایي پیدا کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. که څوک داسې شی واخلي چې نه یې لیدلي وي او نه یې د بیعې په مجلس کې داسې صفات ذکر شي چې د مشتري پوره علم پرې حاصل شي، مشتري ته شریعت د رؤیت (لیدلو) حق ورکړی تر څو نه په اخیستلو کې دوکه شي او نه له کوم ضرر سره مخامخ شي نو بیعه د ده تر لیدلو پورې غیر لازمه ده.

۲. خیار رؤیت د چا حق دی؟

د رؤیت خیار په بیعه کې یوازې د اخیستونکي (مشتري) او په اجاره کې یوازې د مستاجر حق دی. بایع(خرڅوونکي) ته دا حق نه ورکول کېږي، ځکه چې بایع خپله مبیعه لېدلې او ورته معلومه ده، نو د رؤیت اختیار ته اړتیا نه لري.

۳. د خیار رؤیت د حق شرطونه: که چېرې لاندې ذکر شوي شرطونه موجود نه وي، نو مشتري ته د خیار رؤیت حق نه ثابتېږي، بلکې بیعه لازمه ګرځي:

۱. مشتري به مبیعه نه وي لیدلې.

۲. د مبیعې جنس به معلوم وي، لکه: ځمکه، کور، حیوان او داسې نور، خو صفت به یې مجهول وي.

۳. باید عقد د فسخې قابلیت ولري، لکه د بیعې، اجارې، صلحې، تقسیم او داسې نورو شیانو عقدونه، خو که چېرې عقد د فسخه کېدلو امکان نه درلود لکه د نکاح او خلعې عقدونه نو په داسې عقد کې د خیار رؤیت حق نه ثابتېږي.

۴. د رؤیت کیفیت:

له رؤیت څخه مطلب په مبیعه باندې د مشتري پوره علم حاصلېدل دي. که چېرې مشتري د مبیعې داسې نمونه یا ځینې داسې برخه ولیدله، چې د ده علم پرې حاصل شو، نو رؤیت یې ثابت شو او دا حق یې پای ته ورسېد.

۵. په خیار رؤیت کې د عقد فسخه کولو شرطونه:

که څوک د خیار رؤیت له لارې بیعه فسخه کوي، نو باید لاندې شرطونه موجود وي:

۱. د خیار رؤیت حق به ثابت وي که چېرې ساقط شوی و، نو بیعه لازمه ګرځېدلې او د فسخې حق نه لري.

۲. د فسخې په صورت کې به مبیعه نه بېلېږي، داسې چې مشتري ځینې مبیعه واخلي او ځنې نوره بېرته بایع ته ردکړي، ځکه چې په دې کې بایع ته زیان او نقصان دی.

۳. بایع باید د بیعې په فسخه خبر کړل شي تر څو په خپل مال کې آزادانه تصرف وکړي او د مشتري له قید څخه خلاص شي.

۶. د خیار رؤیت سبب: د بیعې د تړون پر وخت یا له تړون څخه د مخه د مبیعې نه لیدل خیار رؤیت ثابتوي خو که چېرې مشتري مخکې له عقد څخه مبیعه لیدلې وي نو د رؤیت حق یې ساقط دی.

۷. د خیار رؤیت د ساقطېدلو حالت: که چېرې مشتري مبیعه په خپل لاس کې واخیستله یا یې بوی کړله یا یې وڅکله او یا د مبیعې پوره توصیف ورته وشو، نو د خیار رؤیت حق یې ساقط شو، ځکه چې په دې تولو سره مشتري تـــه پــــه مبیعـــه باندې پوره علم حاصلېږي.

۸. د خیار رؤیت د مشروعیت دلیل: پیعمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي: (چا چې نالیدلی شی واخیست کله یې چې وویني نو د اختیار خاوند دی که خوښ یې شو نو وادې خلي او که خوښ یې نه شو نو پرې دې ږدي).[۴]

همدا راز حضرت طلحه ابن عبد الله رضي الله عنه له حضرت عثمان رضي الله عنه څخه په بصره کې ځمکـــه واخیـــسته یـــو سړي حضرت طلحه بن عبد الله رضي الله عنه ته وویل: په بیعه کې دې نقصان وکړ حضرت طلحه بن عبدالله رضي الله عنه په ځواب کې ورته وویل: ما ته د رؤیت اختیار شته، ځکه ما داسې شی اخیستي چې ما نه دي لیدلي. بیا د دوی دواړو تر مـــنځ حضرت جبیر بن مطعم رضي الله تعالی عنه د حَکَمْ په حیث وټاکل شو حضرت جبیر رضي الله عنه د طلحة بن عبد الله رضـــي الله عنه په حق کې فیصله وکړه. دا کار د اصحابو په وړاندې واقع شو، خو هېچا ورڅخه انکار ونه کړ، نو پـــه دې ســـره د اصحابو اجماع ثابته شوه.

۹. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

۱۰. **مرستندویه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولـــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کـــورنی کـــار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>خیار شرط تعریف، د روا والي حکمت او حکم یې بیان کړئ.<br>د خیار شرط موده څومره او په کومو شیانو له منځه ځي؟<br>په خیار شرط باندې د بیعې د فسخه کولو شرطونه کوم دي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کـــوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کـــوونکي دې د ســـلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښـــوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |

۴– سنن دار قطني.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (خیار رؤیت) دی په تخته لیکي، د خیار رؤیت لغوي او اصطلاحي تعریف، د ثبوت وخت او احکام یې تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي او د خپل ځان د اطمئنان لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي.<br>که چا کومه پوښتنه درلوده یا په څه نه پوهېده باید د لوست په پای کې ورته ځواب ووایي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله لوست ولولي.<br><br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>۱. خیار رؤیت څه ته ویل کیږي؟<br>۲. خیار رؤیت کله ثابتیږي؟<br>۳. د خیار رؤیت حکم څه دی؟<br>د لاندې سمو جملو مخې ته د ( √ ) او نا سمو جملو مخې ته د (×) نښه کېږدئ:<br>۱. د خیار رؤیت خاوند چې مړشي خیار یې باطلیږي(   ).<br>۲. خیار رؤیت موقت نه دی، او تر هغه پورې په خپل حال پاتې کیږي چې باطلوونکی یې نه وي پیدا شوی.(   ).<br>۳. د وکیل لیدل د مشتري د لیدلو په شان نه دي. (   ). | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>رؤیت په لغت کې: لیدلو ته وایي او په اصطلاح کې د مال د لیدلو په وخت کې مشتري ته د بیعې د منلو او نه منلو واک ته خیار رؤیت وایي.<br>کله چې مشتري مال ووینې په همدې وخت کې ورته اختیار ثابتیږي، له هغه څخه مخکې ورته اختیار نه شته.<br>د خیاررؤیت حکم: مشتري د مال د لیدلو په وخت کې اختیار لري چې بیعه فسخه کړي او یا یې قبوله کړي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د دې درس عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ . | زده‌کوونکي دې د لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## يوولسم لوست:

**عنوان:** خيار عيب

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. د خيار عيب په تعريف سم پوه شي.

۲. د خيار عيب له حکم سره ښه آشنا شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. په عام ډول هر څوک چې کوم جنس اخلي نو دا خوښوي چې هغه روغ او له عيبونو څخه سالم او پـــاک وي. پـــه دې اساس که چېرې پلورونکي (بايع) په پيسو او پېرودونکي (مشتري) په جنس کې کوم عيب پيداکړي، نو شريعت دا حـــق ورکړی چې دغه عيبجن شی خپل پخواني مالک ته يې بېرته ورکړي او بيعه فسخه کړي.

۲. د عيبونو ډولونه: په مبيعه کې عيب په دوه ډوله دی:

۱. هغه عيب چې په ظاهر کې ښکاري، لکه د مبيعې په کوم جزء کې کمې او نقصان وي، لکه ړوندوالی، شلوالی، نيمګړې ګوته، مات ښکر، د غاښ مات والی، کوڼ والی، ګونګ والی، ښکاره او تازه ټپونه، دوامداره ناروغي او داسې نور.

۲. هغه عيب چې په ظاهر کې نه ښکاري خو په مبيعه کې نقصان بلل کېږي، لکه: ټوخی، زايد او بې ځايه غاښ، د سپينو او تورو وېښتانو ګډوالی او داسې نور.

۳. په کوم عيب مبيعه ردېږي؟

که چېرې په مبيعه کې مشتري يا په ثمنو کې بايع عيب پيدا کړي او وغواړي چې خپل مالک ته يې بېرته رد کړي، نـــو کـــه عيب ښکاره و، مبيعه پرته له شاهدانو څخه رد کېدلی شي او که چېرې يې عيب پټ او باطني و، نو دا عيـــب بـــه دوه تنـــه مسلمانان يا يو تن عادل مسلمان په ګوته کوي او ورباندې به اقرار کوي بيا به يې ردوي دا په هغه صورت کې چـــې مقابـــل لوری له عيب څخه منکر وي او که چېرې منکر نه و نو بيا دومره پلټنو ته اړتيا نشته.[۵]

۴. د خيار عيب وخت: خيار عيب کومه ټاکلې نېټه نه لري بلکې هر کله چې په مبيعه کې عيب څرګند شو، که لـــه ډېـــرې مودې څخه وروسته وي هم، مشتري کولای شي چې عيبجنه مبيعه بېرته رد کړي. همدا راز د عيبجنې مبيعې پـــه بېرتـــه ردولو کې عجله شرط نه ده، بلکې مشتري کولای شي چې په عيب باندې له پوهېدلو وروسته په مهلت ســـره عيبجنـــه مبيعه خپل مالک ته بېرته رد کړي، او په ردولو کې يې تاخير د خيار عيب حق نه ساقطوي.[۶]

۵. په مبيعه کې د عيب پټولو حکم:

په بايع باندې واجب دي چې د خپلې مبيعې عيب څرګند کړي او پټول يې ګناه ده، پيغمبر صلى الله عليه وسلم فرمايي: «لَـا يَحِلُّ لِأَحَدٍ يَبِيعُ شَيْئًا إِلَّا يُبَيِّنُ مَا فِيهِ»۷. ژباړه: هېچا ته روا نه ده چې عيبجن شی خرڅ کړي، مګر دا چې عيب يې پـــه ګوتـــه کړي خو که چېرې چا کوم شی له عيبه سره خرڅ کړ او عيب يې بيان نه کړ خرڅوونکی ګنهګار او بيعه صحيحه ده.

٦. د خيار عيب د ثبوت شرطونه:

---

۵- تحفة الفقهاء.

٦- الفقه الاسلامي.

۷- مسند أحمد - (۲۵ / ۳۹۵)

يو لړ شرطونه په درسي کتاب کې ذکر شوي دي . د هغې له جملې څخه يو دا هم دی چې د عيب ازاله به ممکنه نـــه وي، که چېرې ازاله او ليرې والی يې مشتري ته آسانه و نو بيا مشتري د مبيعې د ردولو حق نه لري لکه که کوم تـــوکر وپلـــورل شي او پر هغې پورې لړې ختې وي او په مينځلو يا ګرولو سره پرته له کومې ستونزې پاکېږي.

٧. هغه معاملات چې خيار عيب په کې ثابتېږي:

هغه معاملات چې خيار عيب په کې ثابتېږي، په لاندې ډول دي:

بيع، شراء، اجاره، تقسيم، په مال باندې صلحه، په قتل عمد کې په مال باندې صلحه، مهر او د خلعې بدل.

٨. د عقد په حکم باندې د خيار عيب اثر:

د بيعې پر تړون باندې د خيار عيب حق هېڅ منفي اثر نه لري، نو له دې امله په مبيعه کې د مشتري او په ثمنو کـــې د بـــايع ملکيت ثابتېږي، خو د خيار عيب په موجوديت کې دغه ملکيت غير لازم دی، ځکه په عقد کې د مبيعې روغوالی دلالتاً شرط وي.

٩. د رد شرطونه:

که چېرې مشتري د خيار عيب په بناء مبيعه ردوي نو د رد او د بيعې د فسخې لپاره لاندې خبرې شرط دي:

١. د خيارعيب حق به ثابت وي.
٢. مشتري به جنس بايع ته له هغو صفتونو سره تسليموي، چې ده ته تسليم شوی دی، يعنې مشتري به په مبيعه کې بل عيب نه وي پيدا کړی، خو که له نوي عيب سره د بايع مبيعه خوښه وه، نو بيا يې ردول کومه ستونزه نه لري.
٣. مشتري به بايع د مبيعې په ردولو خبروي.

١٠. د رد کيفيت:

عيبجنه مبيعه په دريو طريقو سره ردېږي:

١. يوازې د خيار عيب د خاوند په اراده چې کله يې مبيعه نه وي قبض کړي او په عيب خبر شي.
٢. د بايع او مشتري په خوښه.
٣. که مقابل لوری منکر شي او موضوع منازعې ته واوړي نو د قاضي په قضاء سره ردېږي.

١١. د رد موانع: په لاندې صورتونو کې که په مبيعه کې عيب ښکاره هم شي بېرته نه رديږي:

١. کله چې مبيعه د بايع په لاس کې هلاکه او له منځه ولاړه شي.
٢. کله چې له مشتري سره په مبيعه کې زيادت منفصله راشي.
٣. کله چې مبيعه د مشتري په لاس کې عيبجنه شي.
٤. کله چې مشتري په عيب رضايت ښکاره کړي.
٥. کله چې مشتري مبيعه له ټولو عيبونو سره قبوله کړي.

١٢. خيار عيب په ميراث وړل کېږي:

ټول فقهاء په دې اتفاق لري چې د خيار عيب حق وارث ته ميراث پاتې کېږي، که د خيار عيب خاوند مړ شي نو دغه حق يې ورثه وو ته نقل کېږي او هغوی هم کولای شي چې مبيعه د عيب له کبله رد کړي البته خيار شرط او خيار رؤيت په ميـــراث نه وړل کېږي.

١٣. **د تدريس تګ لاره:** تشريحي، ګروپي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

١٤. **مرستندويه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشير.

**د لوست بهير:**

| د زده‌کوونکو فعالیت | د ښوونکي فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. | مقدمه: ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:<br>خیار رؤیت تعریف او د ثبوت وخت یې بیان کړئ.<br>د خیار رؤیت حکم څه شی دی؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | ۵ دقیقې |
| زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br><br><br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br><br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br><br><br><br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (خیار عیب) دی، په تخته لیکي، د خیار عیب لغوي او اصطلاحي تعریف، د مشروعیت حکمت، حکم او د ثبوت شرطونه یې تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی په څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو باندې د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره لولي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | ۲۵ دقیقې |
| زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. | **پوښتنې:**<br>أ- لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:<br>۱. خیار عیب تعریف کړئ.<br>۲. د مشروعیت حکمت یې څه دی؟<br>۳. څه شی عیب بلل کیږي؟<br>۴. د خیار عیب د ثبوت شرطونه کوم دي؟<br>ب-د سمو جملو په وړاندې دا (√) نښه او د ناسمو جملو په وړاندې دا (X) کېږدئ:<br>۰. کله چې مشتري په اخیستل شوي مال کې عیب پیدا کړي، اختیار لري، که خوښه یې وه د ټولو پیسو په مقابل کې دې قبول کړي او که خوښه یې نه وه بېرته دې رد کړي، خو د ساتلو او د نقصان د غوښتلو حق نه لري(   ).<br>۱. که مال د مشتري په لاس کې عیبجن شي او بیا وروسته خبر شي چې په هغه | ۱۰ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| | کې د بایع په وړاندې بل عیب هم موجود و، مشتري کولای شي چې مال بېرته رد کړي. ( ) | |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>هر هغه شی چې د تاجرانو په وړاندې د قیمت (نرخ) د نقصان سبب شي عیب دی. او د دې لپاره چې بایع او مشتري له ضرر څخه وژغورل شي اسلامي شریعت دا لازمه کړې چې باید یو بل ته له عیب او نقصان څخه پاک مال ورکړي او د عیب په صورت کې یې د ردولو او واپس کولو واک هم ورکړی دی.<br>د خپل مال د عیب پټول لویه گناه گڼل کېږي نو که څوک خپل مال خرڅوي باید مخکې له بیعې څخه د هغه مال ټول عیبونه ښکاره او واضح کړي، ځکه دا کار په مال کې د برکت لامل گرځي او په دې اړه نبي کریم صلی الله علیه خپلو پیروانو ډېرې لارښوونې کړې دي. د متعاقدینو هر یو اړخ چې په مبیعه یا ثمنو کې په عیب خبر شي کولای شي چې هغه شی بېرته رد کړي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د خیار عیب په هکله یوه مقاله ولیکئ. | زده‌کوونکي دې د خیار عیب په اړه یوه مقاله ولیکي او د خیار عیب مطالب دې په کې روښانه کړي. |



## دوولسم لوست:

**عنوان:** منعه شوې بيعې (باطله بيعه)

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. له منعه شوو بيعو سره آشنايي پيدا کړي.

۲. د باطلې بيعې تعريف او احکام و پيژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. باطله بيعه: په لغت کې باطل: د حق ضد ته وايي. په اصطلاح کې باطله بيعه هغه بيعه ده چې له سره صحت نه لري، هغه داسې چې د انعقاد په کوم شرط کې يې خلل وي.

۲. د باطلې بيعې د ترون حکم: له علمه سره د باطلې بيعې په ترون اقدام کول گناه ده او پر ترون يې انسان گناهگـــارېږي، ځکه د غير مشروع عمل سرته رسول حرام دي او له شريعت څخه سرغړونه ده، مگر د ضرورت په حالت کې روا ده.

۳. باطلې بيعې: ځينې باطلې بيعې چې پر بطلان يې د علماوو اتفاق دی په لاندې ډول دي: لکه د مردارې، وينې، شـــرابو، خنزير او بتانو خرڅول.

۴. بيع النجش: نجش په اصل کې استتار او پټوالي ته ويل کېږي. دلته هم د زيات قېمت ويونکی خپل قصد او مـــرام پــټ ساتي او په فقهي اصطلاح کې نجش هغې بيعې ته ويل کېږي، مشتري مبيعه په داسې لوړ قېمت سره بيه کړي چـــې پـــه خپله يې په هغه قېمت د اخيستلو اراده نه لري، بلکې يوازې د نورو خلکو د تېروتلو لپاره يې بيه کوي. د داسې بيعې پـــه هکله پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي: « لاَ يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ وَلاَ تَنَاجَشُوا ...»[۸] ژباړه: ځينې لـــه ستاســـې څخه دې د بل چا پر سودا باندې سودا نه کوي او په بيعه کې دې تېزول هم نه کوي. سره له دې چې په بيعه کې تېزول غير جائز کار دی خو بيعه صحيحه ده، ځکه چې دا د عاقدينو کار نه دی بلکې د دريم گړي سرې کار دی.

۵. په باطله بيعه کې د مبيعې قبضول:

که چېرې مشتري په باطله بيعه کې مبيعه قبض کړي نو دا مبيعه له ده سره امانت حسابېږي او که چېرې يې مبيعه د بايع لـــه اجازې پرته قبض کړې وه او هلاکه شوه نو پر مشتري يې تاوان لازمېږي.

٦. **د تدريس تگ لاره:** تشريحي، يو کسيز، پوښتنې او ځوابونه.

۷. **مرستندويه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشير.

---

[۸]- صحيح مسلم - (۵ / ۴)

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضري اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکینې لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>خیار عیب تعریف او د مشروعیت حکمت یې بیان کړئ.<br>د خیار عیب د ثبوت شرطونه کوم دي؟<br>د خیار عیب حکم بیان کړئ.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان (چې منعه شوې بیعې(باطله بیعه) دی، په تخته لیکي، د باطلې بیعې لغوي او اصطلاحي تعریف حکم، او د باطلې بیعې احکام تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته د زده‌کوونکو په نمایندګۍ یو زده کوونکی لوست په لوړ آواز لولي او ستونزمن ځایونه په نښه کوي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت له کتاب سره سم په زده‌کوونکو باندې عملي کوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په ټیټه خوله لوست ولولي.<br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>أ- لاندېنیو پوښتنو ته ځواب ووایاست:<br>۱. باطله بیعه تعریف کړئ.<br>۲. د باطلې بیعې حکم څه دی؟<br>۳. د باطلې بیعې درې حکمونه بیان کړئ؟ | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>په لغت کې باطل د حق ضد ته وایي او په اصطلاح کې باطله بیعه هغه بیعه ده چې له سره صحت نه لري او د انعقاد په کوم شرط کې یې خلل وي.<br>حکم یې: په دې بیعه باندې ملکیت نه ثابتیږي. که مبیعه یې قبض کړي وي او یا یې نه وي قبض کړي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د باطلې بیعې په هکله یوه مقاله ولیکئ. | زده‌کوونکي دې د باطلې بیعې په اړه معلومات را ټول او د یوې مقالې په شکل دې ولیکي. |

## دیارلسم لوست:

**عنوان:** فاسده بيعه

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. فاسده بيعه په سمه توګه وپېژني.
۲. د فاسدې بيعې حکم و پېژني.
۳. د فاسدې بيعې له ځينو ډولونو سره آشنا شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د فاسدې بيعې تعريف:

فاسده بيعه هغې بيعې ته ويل کېږي چې د ذات او اصل په اعتبار سره صحيح وي، خو د وصف په اعتبار سره فاسده شوې وي، يدې معنى چې يا د بيعې د صحت کوم يو شرط په کې مختل شوى وي او يا داسې شرط په کې ايښودل شوى وي چې د بيعې تړون يې تقاضا نه کوي، لکه څوک چې چا ته ووايي: دا موټر په دې شرط درباندې خرڅوم چې ته به نه په کې سپرېږې.

۲. په بيعه کې شرط ايښودل:

که چېرې د کومې بيعې تړون د شرط له ايښودلو سره ترسره شي نو دا شرط به له دريو حالتونو څخه خالي نه وي:

- ✓ يا به شرط او بيعه دواړه جائز وي او شرط به د بيعې د غوښتنو په لار کې خنډ نه واقع کېږي، لکه: د اغوستلو په شرط د جامو اخيستل يا د سپرېدلو په شرط د موټر اخيستل.
- ✓ يا به شرط او بيعه دواړه فاسد وي، يعنې شرط به نه د بيعې له غوښتنو سره سمون لري او نه به يې د بيعې عقد تقاضا کوي خو په شرط کولو کې به يې يا د بايع او يا مشتري ګټه وي.
- ✓ يا به بيعه صحيح وي خو شرط به باطل وي، ځکه چې نه به د بيعې له غوښتنو سره مناسب وي او نه به يې د بيعې عقد تقاضا کوي او په شرط کولو کې به يې يا بايع او يا مشتري ته ضرر متوجه وي او يا به په دې شرط باندې هېڅ ګټه او زيان مرتب نه وي او يا به د بايع او مشتري څخه پرته بل چا ته ګټه وي او يا به دغه شرط پخپله مبيعې ته ګټور وي . په دې صورت کې بيعه صحيح او شرط باطل دى، لکه: څوک چې پر چا څه شى خرڅ کړي او دا په کې شرط کړي چې نه به يې چا ته هبه کوي او نه به يې خرڅوي، يا دا چې فلاني ته به يې پور ورکوي او داسې نور.

۳. د فاسدې بيعې ځينې ډولونه:

فاسده بيعه ډېر مثالونه لري چې ځينې يې په لاندې ډول بيانېږي:

د مور په ګېډه کې د حمل خرڅول، په حيواناتو کې د مور خرڅول له حمل پرته د مور خرڅول، د حيوان په تيو کې د شيدو خرڅول، د حيوان پر شا د ولاړو وړيو خرڅول، په ونو کې مېوې په يو معين مقدار سره خرڅول، د يو کور خرڅول په دې شرط چې يوازې يوه مياشت به په کې اوسيږي، د موټر خرڅول په دې شرط چې يوه مياشت وروسته به يې درته تسليموم، د جامو خرڅول په دې شرط چې بايع به يې ورته ګنډي، د يو جنس اخيستل په دې شرط چې تر کوره به يې ورته رسوي.[9]

۴. **د تدريس تګ لاره:** تشريحي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

---

[9]– .الفقه الحنفي و ادلته.

**۵. مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:** ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضری اخیستلو، د ټولګي لــه ښــه تنظیمولــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري. ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي: د باطلې بیعې لغوي او اصطلاحي تعریف بیان کړئ. د باطلې بیعې حکم بیان کړئ. ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نــوي لوست ته متوجه کوي او په دې غرض د موضوع نوم اخلي. | زده‌کوونکي دې د ســلام ځواب ورکړي. زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:** ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (فاسده بیعه) دی په تخته لیکي، د فاسدې بیعې لغوي او اصطلاحي تعریف او حکم تشریح کوي او پــه اړه یــې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکــو تــه وخــت ورکوي تر څو یو تکړه زده کوونکی په اوچت آواز ســره لوســت ولــولي او نــور زده‌کوونکي د لوست ستونزمن ځایونه په نښه کړي. ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو څخه د څو پاراګرافونو په اړه پوښــتنې کوي چې پرې پوه شوي دي او که څنګه. له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته پــه مناســب ډول ســره تشریح کوي. ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت له کتاب سره سم په زده‌کوونکو باندې عملي کوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي. زده‌کوونکي دې پــه پټــه خوله سره لوست ولولي. ضعیف زده کــوونکي دې لوست ولولي. زده کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:** لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست: ۱– فاسده بیعه لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ؟ ۲– د فاسدې بیعې حکم څه دی؟ | زده‌کــوونکي دې ځــواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:** فاسد په لغت کې د صالح یعنی ناسم ضد دی. په اصطلاح کې: فاسده بیعه هغه بیعه ده چې په أصل کې مشروع او روا وي، خو د صفت له مخې صحیحه نه وي. په دې بیعه کې مبیعه او مال په قبض کولو سره ملک ګرځي، تصرف په کې نافذ دی، خو هر یو د متعاقدینو کولای شي چې بیعه فسخه کړي او اخیستی مال بیرته رد کــړي. دا بیعــه یوازې د عقد په کولو سره ملک نه ثابتوي تر څو چې له عقد سره سم د بایع په اجــازه قبض شوی نه وي. | زده‌کوونکي دې غوږ شــي او د خپل ښوونکي خبــرې دې په ډېــر غــور ســره واوري. |
| | **کورنی کار:** د باطلې او فاسدې بیعې تر مینځ توپیر څه دی؟ په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ. | زده‌کوونکي دې د بــاطلې او فاسدې بیعې تر منځ توپیر پــه خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## خوارلسم لوست:

**عنوان:** مکروه بیعه

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. د مکروه بیعې له حقیقت سره آشنا شي.

۲. د مکروه بیعې ډولونه وپېژني.

۳. د مکروه بیعې ځیني مثالونه وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. مکروه بیعه:

سره له دې چې مکروه بیعه فاسدې بیعې ته نږدې او د فاسدې بیعې یوه برخه شمېرل کېږي، ځکه مکروه بیعه په حرمت کې له فاسدې بیعې سره یو شان ده، خو په عقد کې دواړه سره فرق لري. فاسده بیعه له سره نه صحیح کېږي خو مکروه بیعه له گناه او کراهیته سره صحیح کېږي. بل دا چې د فاسدې بیعې فسخه کول دیانتاً او قضاءً واجب دي، خو د مکروه بیعې فسخه کول یواځې دیانتاً واجب دي.

۲. د مکروه بیعې ډولونه: مکروه بیعه ډېر ډولونه لري چې ځیني یې په درسي کتاب کې ذکر شوي دي او ځینې یې دلته په لنډ ډول ذکر کېږي:

- ✓ د مسلمان ورور په بیعه باندې بیعه کول:

د دې بیعې دوه صورتونه په کتاب کې ذکر شوي دي، نور مثالونه هم لري. لکه: کله چې د یو جنس د قېمت په اړه دوه کسان سره موافقې ته ورسېږي یوازې عقد پاتې وي، په دې وخت کې دریم سړی راشي او مشتري ته ووایي: دا بیعه پرېږده، ځکه زه همدا جنس په ټیټې بیې خرڅوم. یا داسې چې بایع ته څوک ووایي: له ده څخه مبیعه بېرته را واخله زه یې درنه په زیات قېمت اخلم. د مسلمان ورور په سودا باندې سودا کول مکروه دي، ځکه د مسلمانانو تر منځ کرکه، نفرت او دښمني را منځ ته کوي، چې په ټولنه کې د بې اعتمادۍ او شخړو لامل گرځي.

- ✓ بولي: د نجش بیعه ناجائزه او د بولۍ بیعه جایزه او روا ده. بولۍ دې ته وایي، یو بایع اعلان وکړي چې ما ته هر څوک زیاتې پیسې راکوي، مبیعه په هغه خرڅوم یو سړی لس افغانۍ نرخ ووایي، بل پنځلس افغانۍ نرخ ووایي، بل شل افغانۍ نرخ ووایي. دا سلسله تر هغې روانه وي چې په مشتریانو کې یو سړی دومره اوچت قېمت ووایي چې د هغې له پاسه نور څوک قېمت اوچت نه کړي، نو دا جائزه ده. په حدیث شریف کې راځي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دا لوښي او پرده څوک اخلي؟ یوه سړي وویل: زه یې په یوه درهم باندې اخلم. بیا پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: آیا څوک شته چې له یو درهم څخه یې په زیات قېمت واخلي؟ بل سړي وویل: زه یې په دوه درهمه اخلم، نو پیغمبر صلی الله علیه وسلم بیا په همدغه سړي خرڅ کړل.[۱۰]
- ✓ د قافلې مخې ته ورتگ او یا د کلیوال لپاره د ښاري بیعه:

دې ډول بیعې ته په فقه کې ((تلقي الرکبان)) بیعه وایي. دا بیعه څو صورتونه لري چې په لاندې ډول بیانېږي:

---

۱۰– الفقه في ثوبه الجدید.

۱. یو صورت یې دادی چې د ښار اوسیدونکي مشتریان د قافلې مخې ته ورشي، له هغوی څخه خوراکي توکي په ارزانه نرخ واخلي او بیا یې په بازار کې په لوړ قیمت وپلوري خو دا بیعه په هغه وخت کې مکروه ده چې د ښار اوسېدونکي خوراکي توکو ته زیاته اړتیا ولري.

۲. بل صورت یې دا دی چې د کلو او بانډو خلک د بازار له نرخ څخه ناخبره وي او د ښاراوسېدونکي له دوی څخه په ټیټ نرخ مالونه واخلي.

۳. بل صورت یې دا دی چې د ښار سړی له ښار څخه د باندې سړي ته ووايي: خپل مالونه دې په خپله مه خرڅوه بلکې ما ته یې راليږه، زه به یې درته په لوړ نرخ پلورم. دا بیعه مکروه ده ځکه چې که هغه سړی خپل مالونه په خپله وپلوري نو په ارزانه نرخ به یې خرڅوي، چې په دې کې عامو وګړو ته خیر او ګټه ده.

په پورتنیو ذکر شویو صورتونو کې د ښاري سړي مقصد عادتاً یا قافلې والا او یا له ښار څخه د باندې اوسېدنکي سړي ته دوکه ورکول وي او یا له دې کار څخه د ښار عام وګړي له ستونزو او تکلیفونو سره مخ کېږي. که چېرې پورتنۍ بیعې ذکر شویو ضررونو ته نه مفضي کېدلې، نو بیا کوم باک نه لري.[۱۱]

✓ د جمعې د آذان پر وخت بیعه:

د جمعې په ورځ د جمعې د لمانځه له لومړي اذان څخه وروسته اخیستل او خرڅول تحریمي مکروه دي، پیغمبر صلی الله علیه وسلم په دې اړه فرمایلي دي: ((حرمت التجارة یوم الجمعة ما بین الاذان الاول الی الاقامة))[۱۲] ژباړه: د جمعې په ورځ له لومړي آذان څخه تر اقامت پورې تجارت حرام شوی دی. یعنې د لمانځه تر خلاصېدو پورې.

✓ د غلا شوي شي اخیستل:

که چېرې مشتري خبر وي چې دغه جنس د غلا دی نو ده ته یې اخیستل حرام دي.[۱۳]

✓ په مسجد کې خرڅول:

په مسجد کې اخیستل او خرڅول مکروه دي. پیغمبر صلی الله علیه وسلم په دې اړه فرمایلي دي: ((اذا رایتم من یبیع او یبتاع في المسجد فقولوا: لا اربح الله تجارتک)) ژباړه: که څوک مو ولیدل چې په مسجد کې یې اخیستل او خرڅول کول نو ورته ووایئ: خدای دې درته په دغه تجارت کې ګټه په برخه نه کړي. په مکروه بیعه کې د بایع ملکیت په ثمنو کې او د مشتري ملکیت په مبیعه کې ثابتېږي او هر یو کولای شي چې ثمن او یا مبیعه قبض کړي.

۳. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، مناقشوي، ګروپي، پوښتنې او ځوابونه.

۴. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

[۱۱]– الفقه الحنفي في ثوبه الجدید.

۱۲– فتح الباري، ج: ۳، ص: ۳۲۴.

۱۳– الفقه الحنفي و ادلته.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي لــه ښــه تنظیمولــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د فاسدې بیعې لغوي او اصطلاحي تعریف بیان کړئ.<br>د فاسدې بیعې حکم بیان کړئ.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نــوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کــوونکي دې د ســلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (مکروه بیعه) دی، په تخته لیکي د مکروه بیعــې لغوي او اصطلاحي تعریف، حکم او د مکروه بیعې ډولونه تشریح کوي او په اړه یــې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي له دې څخه وروسته زده‌کوونکــو تــه وخــت ورکوي تر څو لوست په ټیټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته پــه مناســب ډول ســره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په ټیټه خوله سره لوست ولولي.<br>ضــعیف زده‌کــوونکي دې لوست ولولي.<br>زده‌کوونکي یې دې عملــي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>أ-  لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:<br>۱- مکروه بیعه تعریف کړئ.<br>۲- د مکروه بیعې حکم څه دی؟<br>۳- په لنډه توګه د مکروه بیعې مهم ډولونه وښایاست.<br>ب-د لاندې سمو جملو مخې ته د ( √) او د ناسمو جملو مخــې تــه د (×) نــښه کېږدئ:<br>۱.  د نجش حکم: نجش بیعه مکروه ده.(    ).<br>۲.  د جمعې د آذان په وخت کې بیعه مکروه نه ده (    ) .<br>۳.  له مکروهاتو سره عقد نه فاسدیږي. (    ) . | زده‌کــوونکي دې ځــواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>مکروه په لغت کې د محبوب، یعنې بد ګڼل شوي ضد دی. شرعاً هغه بیعــه ده چــې | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې |

| | | |
|---|---|---|
| | أصلاً او وصفاً روا وي، خو د يوه بل شي له کبله ورڅخه د ډېر کولو حکم شــوی وي. په مکروه بيعه کې له قبض څخه مخکې ملکيت ثابتېږي او د قېمت ورکول يـــې واجبېږي. د مکروه بيعې مهم ډولونه د نجش، د ورور په بيعه باندې بيعه کـــول دي، د قافلې مخې ته ورتګ او د جمعې د آذان په وخت کې بيعه کول دي. | په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د مکروهه بيعو په هکله يوه مقاله وليکئ. | زده کوونکي دې د مکـــروه بيعې په اړه يوه مقاله وليکي. |

## پنځلسم لوست:

**عنوان:** اقاله

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. د اقالې تعريف وپېژني.
۲. د اقالې د حکم او شرطونو سره اشنا شي.
۳. د اقالې اړوند مسائل وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱. د اقالې تعريف:**

اقاله عربي لفظ دی، د اقالَ، يقيل اقالة باب دی د (قول) له کلمې څخه اخيستل شوی دی او همزه په کې د سلب لپاره ده لکه چې وايي: اَقَالَ ای ازالَ القول. يعنې خپل قول يې له منځه يوړ او په اصطلاح کې د بيعې د تړون فسخه کول او د عقد له منځه وړلو ته ويل کېږي . په دې اساس اقاله په ټولو هغو عقدونو کې روا ده چې د فسخې قابليت ولري لکه: بيعه، اجاره او داسې نور.

**۲. د اقالې شرطونه:**

په اقاله کې دا شرط دی چې په لومړنيو ثمنو سره به صورت مومي که چېرې يې اقاله په دې شرط وکړه چې له لومړيو ثمنو څخه به کمې او يا زياتې وي نو دا شرط باطل دی او اقاله په لومړنيو ثمنو سره صحيح کېږي.

**۳. د اقالې حکم:**

اقاله کله مستحبه او کله واجبه وي، که چېرې له بايع او مشتري څخه کوم يو په خپله بيعه پښېمانه وي او د اقالې غوښتنه وکړي، نو اقاله مستحبه ده، خو که چېرې عقد فاسد يامکروه وي، نو بيا اقاله واجبه ده، ځکه په دې حالت کې پر دواړو عاقدينو باندې له معصيت څخه ځان ساتل واجب دي، نو بايد دوی دا تړون فسخه کړي.

**۴. د اقالې رکن:**

د اقالې رکن ايجاب او قبول دی که چېرې د بيعې يو جانب د ايجاب وينا او بل جانب د قبول وينا وکړه، نو د اقالې رکن صورت وموند او اقاله ثابته شوه. د اقالې ارکان چې ايجاب او قبول دي بايد د اقالې په مجلس کې قولاً يا فعلاً صورت ومومي او مقابل لوری پرې خبر کړل شي.

**۵. د اقالې حقيقت:**

امامان د اقالې په حقيقت کې درې نظرونه لري:

۱. امام محمد (رح)، شوافع او حنابله وايي چې که اقاله د مبيعې له قبض څخه مخکې وي، نو دا د عاقدينو او نورو خلکو په حق کې نوې بيعه نه ده، بلکې د عقد فسخه او له منځه وړل دي، ځکه چې د عقد له منځه وړل او بيع دواړه متضاد حقيقتونه دي نو حکمونه يې هم مختلف دي.
۲. امام يوسف (رح) او امام مالک (رح) وايي چې اقاله د عاقدينو او نورو خلکو په حق کې نوې بيعه ده، ځکه چې بيعه په مال باندې د مال تبادلې ته وايي او اقاله هم له قبض څخه وروسته بيا د دويم ځل لپاره په مال سره د مال مبادله ده، نو په اقاله کې هم هغه حکمونه جاري کېږي چې په بيعه کې جاري کېږي.

۳. امام ابو حنیفة (رح) وایي چې اقاله د عاقدینو په حق کې فسخه ده، خو د نورو خلکو په حق کې نوې بیعه ده، ځکه چې په دې کې ایجاب او قبول په مال سره تر سره کېږي په دې اساس د نورو خلکو په حق کې بیعه وګرځول شوه، تر څو د هغوی حقوق تر پښو لاندې نه شي. دغه دواړه عقد کوونکي د نورو خلکو د حقونو د ساقطېدلو اختیار نه لري او پــه همدې نظر دحنفي مذهب فتوای ده.

۴. د اقالې حکم:

اقاله د عاقدینو په حق کې فسخه ده، خو د نورو خلکو په حق کې نوې بیعه ده. د دې ګټه دلته په لانــدې معــاملاتو کــې معلومېږي: که چېرې څوک ځمکه خرڅه کړي او په دې ځمکه کې د چا د شفعې حق وي، خو په لومړۍ بیعه کې له خپــل حق څخه تېر شو او مشتري او بایع دغه بیعه اقاله کړه نو له اقالې څخه وروسته د شفیع حق بیا په دغه ځمکه کې ثابتېږي.

۵. په لاندې صورتونو کې اقاله نه صحیح کېږي:

- ✓ که چېرې د مبیعې ځینې برخه هلاکه او له منځ ولاړه په دې مبیعه کې اقاله نه صحیح کېږي.
- ✓ که چېرې د بیعې دواړه بدلین هلاک شول نو بیا هم اقاله نه صحیح کېږي.

۶. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، فردي، پوښتنې او ځوابونه.

۷. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی د کــورنی کــار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د مکروه بیعې لغوي او اصطلاحي تعریف بیان کړئ.<br>د مکروه بیعې حکم بیان کړئ.<br>د مکروه بیعې مهم ډولونه کوم دي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کــوونکي دې د ســلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (اقاله) دی په تخته لیکي، د اقــالې لغــوي او اصطلاحي تعریف، حکم، د اقالې د رواوالي حکمت، د اقالې شرطونه او د دې باب اړوند مسائل په پراخه حوصله او د خوښۍ په فضا کې تشریح کوي او پــه اړه یــې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخــت ورکوي تر څو لوست په ټیټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څــو د لوســت یــو یــو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې ټولو څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته پــه مناســب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کــوي | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په ټیټه خوله سره لوست ولولي.<br>ضــعیف زده‌کــوونکي دې لوست ولولي.<br>زده‌کوونکي یې دې عملــي |



| | | |
|---|---|---|
| | او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>أ– لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ:<br>۱. د (مَنْ أَقَالَ نادماً، أَقَالَهُ اَللّٰهُ عَثْرَتَهُ) معنی بیان کړئ.<br>۲. د اقالې د رواوالي حکمت او ګټه څه ده؟<br>۳. د اقالې حکم څه دی؟<br>ب. لاندی تش ځایونه ډک کړئ:<br>اقاله په لغت کې: ..............................ته وایي.<br>او په شریعت کې: ................................................................<br>ج. د لاندې سمو جملو مخې ته د ( √ ) او د ناسمو جملو مخې ته د (× ) نښنه کېږدئ:<br>۱. دا شرط نه دی چې د اقالې دواړه اړخه به په اقاله کولو راضي او خوښ وي.().<br>۲. دا شرط نه دی چې مبیعه دې د اقالې په وخت کې موجوده وي.( ). | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. او هم دې خالي ځایونه په مناسبو کلماتو ډک کړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>اقاله په لغت کې پورته کولو او لرې کولو ته وایي. په اصطلاح کې د متعاقدینو په خوښه د بیعې له مینځه وړلو ته اقاله ویل کیږي. د اقالې په روا والي کې حکمت د خلکو لپاره د آسانتیا رامنځ ته کول دي. اقاله په بیعه کې جائزه ده. په اقاله کې دا شرط ده چې باید د بیعې دواړه اړخه په اقاله باندې راضي او خوښ وي او مبیعه د اقالې په وخت کې موجوده وي.<br>اقاله د فسخې په معنا ده، خو په کومو ځایونو کې چې فسخه متعذره شي بیا د فسخې په معنا سره نه کېږي، همدارنګه که اقاله له لومړنیو ثمنو څخه په زیاتو او یا کمو پیسو صورت ومومي بیا هم اقاله نه، بلکې نوې بیعه ده، همدارنګه په اقاله کې د پیسو له منځه تلل د اقالې د صحت مانع نه ګرځي، خو د مبیعې له منځه تلل د اقالې مانع ګرځي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>رسول الله (ص) فرمایي: « مَنْ أَقَالَ نادماً، أَقَالَهُ اَللّٰهُ عَثْرَتَهُ » دغه حدیث شریف په خپلو کتابچو کې شرح کړئ؟ | زده‌کوونکي دې حدیث شریف په خپلو کتابچو کې شرحه ولیکي. |

## شپاړلسم لوست:

**عنوان:** د مرابحې بيعه

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۴. د مرابحې بيعې تعريف وپېژني.

۵. د مرابحې بيعې د مشروعيت سبب و پېژني.

٦. د مرابحې بيعې حکم او شرطونه وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د مرابحې تعريف: مرابحه د رابَحَ يُرابِحُ مصدر دی چې فايدې او ګټې ته ويل کېږي. د مرابحې په بيعه کې د تاجرانو عرف او عادت معتبر دی او هر هغه څه چې د مبيعې په قيمت کې زيادت راولي د مبيعې له ثمنو سره جمع کېږي، هغه زيادت که مادي وي او که معنوي.

۲. په مرابحې بيعه کې د خيانت څرګندېدل: که چېرې د مرابحې په بيعه کې د بايع خيانت څرګند شو، نو مشتري ته اختيار دی يا به مبيعه په ټولو ثمنو اخلي او يا به يې ردوي، ځکه چې د مشتري رضايت ته زيان ورسېد.

۳. د مبيعې هلاکېدل: که چېرې د مرابحې په بيعه کې مبيعه په خپله هلاکه شوه يا مشتري هلاکه کړه، نو بيعه لازمه شوه او مشتري به بايع ته پوره ثمن (پيسې) ورکوي او خيار يې له منځه ولاړ.

د مرابحې په بيعه کې د خيانت خيار په ميراث نه وړل کېږي که چېرې د مرابحې په بيعه کې صاحب د خيار مړ شو او بيا په مبيعه کې خيانت ښکاره شو نو د مړي ورثه مبيعه نشي ردولای.

۴. **د تدريس تګ لاره:** تشريحي، ګروپي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

۵. **مرستندويه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخيستلو، د ټولګي له ښه تنظيمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکيني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د اقالې لغوي او اصطلاحي تعريف بيان کړئ.<br>د اقالې حکم بيان کړئ.<br>د اقالې شرطونه کوم دي؟ د دې باب اړوند مسائل بيان کړئ.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پيدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه يې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (د مرابحې بيعه) ده، په تخته ليکي، د مرابحې | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي. |

| | | |
|---|---|---|
| | لغوي او اصطلاحي تعريف، حکم، د مرابحې د رواوالي حکمت، د مرابحې شـــرطونه او د دې باب اړوند احکام تشريح کوي او په اړه يې زده‌کوونکو ته لازم معلومـــات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځايونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعيفه زده‌کوونکو غواړي تر څـــو د لوســـت يـــو يـــو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناســـب ډول ســـره تشريح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعاليت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کـــوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br><br>ضـــعيف زده‌کـــوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده‌کوونکي يې دې عملـــي کړي. |
| ۱۰ دقيقې | **پوښتنې:**<br>لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:<br>۱. د مرابحې بيعه تعريف کړئ.<br>۲. حکم يې څه دی؟<br>۳. د مرابحې شرطونه څه دي؟<br>۴. د مرابحې د بيعې د جواز سبب ذکر کړئ.<br>۵. د مرابحې دوه حکمونه ذکر کړئ. | زده‌کـــوونکي دې ځـــواب ورکړي. |
| ۵ دقيقه | **د لوست لنډيز:**<br>مرابحه لغتاً ګټې او ډېروالي ته وايي او شرعاً په معلومه ګټه با ندې د مال خرڅولو ته د مرابحې بيعه ويل کېږي. د دې بيعې په جواز او روا والي کې حکمت دا دی تر څو خلک په پوره ډاډ او ډاډه زړه سره سودا وکړي او په خپلو معاملاتو کې فرېب ونـــه خوري. دا عقد او تړون شرعاً جائز دی، ځکه د جواز ټول شرطونه پکې موجود دي. د دې بيعې د صحت لپاره دا شرط دی چې د اخيستلو اصلي قيمت او د ګټې انـــدازه بايد معلومه وي. د مرابحې په بيعه کې د مبيعې په اصلي قېمت باندې د دوبي، رنـــګ ورکوونکي، طراز (چکن کوونکي او مزي تاوونکي او د حمل (بـــارولو، نقلولـــو، او خوراک پېسې ورزياتول جواز لري. همدارنګه د امام ابو حنيفة (رح) په نزد که چېرې د مرابحې په بيعه کې مشتري په کوم خيانت پوه شو، نو دی اختيار لري کـــه يـــې خوښـــه وي په ټولو ثمنو دې واخلي، او يا دې بيرته ورکړي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د مرابحې د بيعې په هکله عمده ټکي په خپلو کتابچو کې وليکئ؟ | زده‌کوونکي دې د مرابحـــې بيعې عمده ټکي پـــه خپلـــو کتابچو کې وليکي. |

## اوولسم لوست:

**عنوان:** د تولیې بیعه

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. د تولیې له لغوي او اصطلاحي تعریف سره آشنا شي.

۲. د تولیې د مشروعیت دلیل وپیژني.

۳. د تولیې د صحت شرطونه او اړوند احکام وپیژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د تولیې تعریف: تولیه په اصطلاح کې د مبیعې خرڅولو ته په هغه قیمت باندې چې بایع ته تمامه شوې وي که حقیقتاً وي او که حکماً پرته له زیادته تولیه ویل کیږي.

د حکماً مثال: که چیرې څوک د میراث، هبې او وصیت له لارې د یو شي مالک شي او بیا دغه شی په دریم سړي قیمت کړي او په همدغه قیمت یې پرته له زیادته پر چا باندې وپلوري دا هم د تولیې بیعه ده.

د تولیې بیعې ته د امانت بیعه هم ویل کیږي، ځکه چې په تولیه کې دا شرط دي چې بایع به مشتري ته وایي: ما دغه جنس په دومره اخیستی او له تا څخه هیڅ ګټه نه اخلم، بایع او مشتري ته به لومړنۍ ثمنې معلومې وي، که چیرې لومړۍ ثمنې معلومې نه وې بیا بیعه فاسده ده، خو که دویم مشتري پرې راضي (خوښ) و نو بیا صحیح ده.[14] د صرف په بیعه کې تولیه نه منعقده کیږي.

۲. د تولیې په بیعه کې خیانت ښکاره کېدل:

که چیرې د تولیې په بیعه کې د ثمنو په صفت او یا په قدر کې خیانت ښکاره شو نو مشتري دا اختیار لري چې یا مبیعه واخلي او یا یې رد کړي.

- ✓ د ثمنو په صفت کې خیانت: لکه یو سړی چې له چا څخه یو شی په لس افغانۍ په نسیه واخلي او دویم مشتري ته ووایي چې دا مې په لس افغانۍ اخیستی، خو دا ورته ونه وایي چې جنس مې په نسیه اخیستی، نو دا د ثمنو په صفت کې خیانت حسابیږي.
- ✓ د ثمنو په قدر کې خیانت: لکه یو سړی چې یو جنس په نهه افغانۍ واخلي او دویم مشتري ته ووایي چې دا مې په لس افغانۍ اخیستی او پرته له ګټې او تاوانه یې په تا باندې خرڅوم. دویم مشتري یې واخلي او وروسته بیا څرګنده شي چې لومړي مشتري جنس په نهه افغانۍ اخیستی، د دې حکم دا دی چې د دویمو ثمنو څخه د خیانت اندازه کمیږي او دویم مشتري اختیار لري چې بیعه فسخه کړي او یا یې قبوله کړي چې بیعه په باقي ثمنو باندې لازمه ګرځي.[15]

۳. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، فردي، پوښتنې او ځوابونه.

۴. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

۱۴- الفقه الحنفي في توبة الجدید.

۱۵- الموسوعة الفقهیة.



د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي لـه ښــه تنظیمولــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروســته د دوی کــورنی کــار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د مرابحې بیعې لغوي او اصطلاحي تعریف بیان کړئ.<br>د مرابحې بیعې حکم او د روا والي حکمت یې بیان کړئ.<br>د مرابحې د صحت شرطونه او اړوند احکام یې بیان کړئ.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نــوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کــوونکي دې د ســـلام ځواب ورکړي.<br><br><br><br><br>زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (د تولیې بیعه) دی، په تخته لیکي د تولیې لغوي او اصطلاحي تعریف، د مشروعیت دلیل یې، د تولیې د رواوالي حکمت، د تــولیې د صحت شرطونه او اړوند احکام یې تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکــو تــه لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوســت په ډله ییزه ډول ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناســب ډول ســره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کــوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br>زده کوونکي دې په ډله ییزه ډول سره لوست ولولي.<br><br>ضــعیف زده‌کـــوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده کوونکي یې دې عملــي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:<br>د تولیې بیعه تعریف کړئ.<br>د تولیې بیعې حکم څه دی؟<br>د تولیې شرطونه کوم دي؟<br>د تولیې بیعې د مشروعیت دلیل ذکر کړئ.<br>د تولیې حکمونه ذکر کړئ. | زده‌کـــوونکي دې ځـــواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>د تولیې تعریف: تولیه په لغت کې بل چا ته د ولایت او واک ورکولو ته وایي. او پــه اصطلاح کې پخپل سر(خپله بیه) د شي پلورلو ته وایي. د تولیې د بیعې د مـــشروعیت | زده کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبــرې دې په ډېر غور سره واوري. |

| | | |
|---|---|---|
| | په اړه په یو روایت کې راغلي دي، چې: ابوبکر (رض) دوه اوښان واخیستل رسول الله (ص) ورته وویل: (وَلِّنِي أحدَهُمَا) یعنی یو اوښ پخپل سر راکړه یعنې په هغو ثمنو (قیمت) یې راکړه چې تا پرې اخیستی دی. د دې بیعې له رواوالي څخه حکمت دا دی چې خلک په ډاډه زړه سودا وکړي، خو په دې بیعه کې دا شرط دي چې عوض او بدل باید مِثلي او یا قِیمي وي او بل دا چې عوض او بدل باید د مشتري مملوک (خپل مال) وي. په تولیه بیعه کې که چېرې مشتري په خیانت خبر شي نو په هماغه اندازه دې ثمن کم کړي او موزون او مکیل شیان بېرته له سره وزن او پیمانه کېږي تر څو دواړه لوري ښه مطمئن شي. | |
| | **کورنی کار:**<br>د مرابحې او تولیې بیعو فرق په خپلو کتابچو کې ولیکئ؟ | زده کوونکي دې د مرابحې او تولیې بیعو تر منځ توپیر په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## اتلسم لوست:

**عنوان:** ربا (سود)

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. د ربا له تعريف سره آشنا شي.

۲. د سود د حرمت دليل او حکمت وپېژني.

۳. د ربا ځيني صورتونه وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د ربا تعريف: ربا عربي لفظ دی، په لغت کې مطلق زيادت ته ويل کېږي، او په اصطلاح کې ډېر تعريفونه لري، چې ځيني يې دادي:

✓ پرته له عوضه زيادت ربا بلل کېږي.

✓ د صفت په اعتبار سره فاسد عقد ربا بلل کېږي، که زيادت په کې وي. او که نه وي لکه په نسيه سره د نغدو پيسو خرڅول پر نغدو پيسو باندې.

۲. د ربا ډولونه:

عادتاً ربا په دوه ډوله ده: د نسيې ربا، د فضل (زيادت) ربا.

✓ د تاخير يا نسيې ربا: دا ربا له هغه زيادت څخه عبارت ده چې پور ورکوونکی يې په پور اخيستونکي باندې د تاخير په مقابل کې شرط کوي د مثال په ډول: يو سړی چا ته زر افغانۍ ورکوي په دې شرط چې يوه مياشت يا يو کال وروسته به يونيم زر افغانۍ راکوي، يا داسې چې زر افغانۍ پور درکوم په دې شرط چې د هرې مياشتې په مقابل کې به دوه سوه افغانۍ درباندې زياتېږي چې له اسلام څخه وړاندې د جاهليت په زمانه کې يې هم رواج درلود.

✓ د فضل (زيادت) ربا: فضل په عربي ژبه کې زيادت ته وايي. له زيادته د يو جنس په خپل همجنس باندې پلورلو ته د فضل ربا ويل کېږي، لکه: زر افغانۍ په دولس سوه افغانيو باندې يا يو من غنم په يو نيم من غنمو باندې.

۳. د ربا (سود) حکم: سود په ټولو آسماني اديانو کې حرام عمل ګڼل شوی دی، ځکه چې زياتې فردي او ټولنيزې بدې او ناوړه پايلې لري. ځيني يې په لاندې ډول بيانېږي:

أ. د وګړو تر منځ دښمنۍ او بدبينۍ را منځ ته کوي.

ب. په ټولنه کې د مرستې روحيه کمزورې کوي.

ج. ځيني وګړي له زحمت او مشقت ګاللو څخه پرته بډايان کوي او د نورو خلکو ثروت ورته بې له کوم عوضه راجمع کېږي.

د. سود د ملکونو د استعمار لويه وسيله ده چې بډايه ملکونه غريب ملکونه له همدې لارې څخه خپل مستعمر او منت بار ګرځوي او داسې نور ډېر زيات ضررونه او زيانونه په سود باندې مرتب دي.[۱۶]

۴. په نېټې سره خرڅول:

په نېټې سره خرڅول درې صورتونه لري:

---

[۱۶]– فقه السنة.

❖ په زيات قېمت باندې د يو شي خرڅول سره له نسيې لکه: يو څوک چې چا ته ووايي: دا جنس نن سل افغانۍ قېمت لري، خو که ته يې په نېټه اخلې، نو په يو نيم سل يې دربانديې خرڅوم او مشتري يې ورسره ومني. دا جائزه بيعه ده او بيع بالاجل هم ورته ويل کېږي.

❖ که څوک چا ته ووايي: زر افغانۍ پور درکوم، په دې شرط چې يو کال پس به يو نيم زر افغانۍ راکوې، دا بيعه د امت په اتفاق سره سود دی.

❖ که څوک پر چا پور ولري او پوردار مالک ته ووايي چې ماته يو څه مقدار پيسې پرېږده نو باقي به يې زه سم دلاسه درکړم نو دا بيعه هم حرامه ده.[17]

٦. **د تدريس تګ لاره:** تشريحي، فردي، پوښتنې او ځوابونه.

٧. **مرستندويه درسي توکي:** د زده‌کوونکي کتاب، د ښوونکي ورځنۍ درسي پلان، تخته او تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده‌کوونکو فعاليت |
|---|---|---|
| ۵ دقيقه | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخيستلو، د ټولګي له ښه تنظيمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکيني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د توليې بيعې لغوي او اصطلاحي تعريف بيان کړئ.<br>د توليې بيعې حکم او د روا والي حکمت يې بيان کړئ.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پيدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه يې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقيقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې ربا ((سود)) دی، په تخته ليکي، د ربا (سود) لغوي او اصطلاحي تعريف، د ربا د حرمت دليل، د ربا تحريم حکمت، د ربا حکم او صورتونه يې تشريح کوي او په اړه يې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي تر څو لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځايونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعيفه زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لوست يو يو پاراګراف په لوړ آواز ولولي.<br>له دې څخه وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشريح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعاليت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي او د خپل ځان د اطمئنان لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br>ضعيف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br>زده‌کوونکي يې دې عملي کړي. |

---
[17]– الموسوعة الفقهية.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>لاندې پوښتنې ځواب کړئ:<br>۱. په شریعت کې د ربا (سود) حکم څه دی؟<br>۲. د ربا او سود د حرمت حکمت څه دی؟<br>۳. د ربا څو صورتونه بیان کړئ. | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>ربا په لغت کې: زیادت ته وایي. په اصطلاح کې بې عوضه زیادت ربا بلل کېږي. ربا د الله تعالی پدې قول حرامه شوې ده: { وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا}. ژباړه: او الله تجارت روا، او سود یې ناروا کړی دی.<br>د ربا (سود) په حرمت کې حکمت دا دی تر څو پر بې وزلو خلکو باندې ترحم او شفقت وشي، بلایه خلک د غریبو خلکو له شتمنیو څخه نا روا استفاده ونه کړي او دوی خپل غلامان ونه گرځوي. ربا د اسلام په مقدس دین کې حرامه ده.<br>د ربا علتونه جنس او قدر دی. په هر شي کې چې دا دواړه صفتونه موجود شي په هغې کې زیادت او نسیه دواړه حرام دي په کوم شي کې چې له دې صفتونو څخه یو له منځه ولاړ شي په هغې کې زیادت روا او نسیه حرامه ده. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د ربا او سود د حرمت او ټولنې ته د هغې د ضررونو په هکله یوه مقاله ولیکئ. | زده‌کوونکي دې د سود د فردي او ټولنیزو زیانونو په اړه یوه مقاله ولیکي. |

[18] -- رد المحتار(ج ۲۰ / ص ۹۸)

[19] -[البقرة/۲۷۵]

**نولسم لوست**:

**عنوان:** پور ( پور )

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي بايد:

۱. د پور له ماهيت سره آشنايي.

۲. د پور ورکولو ارزښت وپېژني.

۳. د پور شرطونه وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د پور تعريف:

قرض په لغت کې غوڅولو او پرې کولو ته وايي او په اصطلاح کې د ثواب په نيت چا ته تر يوې نېټې پورې د مثلي شي لــه ورکولو څخه عبارت دی، تر څو هغه ګټه ترې واخلي او مثل يې بېرته ده ته ورکړي.

په غير مثلي شيانو لکه: حيوان، لرګيو، کور او ځمکه کې پور نه صحيح کېږي، ځکه چې د غير مثلـــي شـــيانو بېرتـــه ردول ممکن نه دي.[20]

۲. د پور ورکولو تکليفي حکم:

اړو او محتاجو وګړو ته پور ورکول مستحب کار دی او که د پور غوښتونکی د اضطرار حالت ولري، بيا ورته پور ورکـــول واجب دي. او که پور ورکوونکی په دې پوهېږي چې پور غوښتونکی يې په ناوړه لارو لګوي ؟ بيا ورته پور ورکول روا نـــه دي.[21]

۳. د پور لپاره د نېټې ټاکل:

د جمهورو علماؤ په وړاندې په پور کې نېټه ټاکل د پور په تاخير او وروسته والي کې تاثير نه لري او که چېرې د پـــور پـــر وخت کومه نېټه وټاکل شوه هغه باطله ده د پور ورکوونکی حق لري هر وخت يې چې زړه وغواړي د خپل پـــور مطالبـــه او غوښتنه وکړي.

۴. په پور کې زيادت شرط کول:

که چېرې پور ورکوونکی د خپل پور په مقابل کې کوم ډول ګټه يا زيادت وټاکي يا په عرف او عادت کې داســـې وي چـــې پور ورکوونکي ته بايد څه زيادت ورکړل شي نو دا هر څه حرام دي او هر ډول شرط لغوه دی، البته که چېرې پـــوروړی د پور د ادا کولو پر وخت په خپله خوښه پور ورکوونکي ته څه زيات شی ورکړي کوم باک نه لري، ځکه له حـــضرت جـــابر رضي الله تعالی عنه څخه روايت دی چې فرمايي: زما پر حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم باندې پور و، رسول الله صلی الله عليه وسلم ما ته خپل پور هم راکړ او يو څه يې ورباندې زيات راکړل. دا زيادت هغه وخت روا دی چې په کـــوم عـــرف او عادت بناء نه وي، ځکه چې معروف د مشروط حکم لري.

۵. **د تدريس تګ لاره:** تشريحي، ډله اييزه، پوښتنې او ځوابونه.

٦. **مرستندويه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشير.

---

[20]– الفقه الحنفي في توبة الجديد.

[21]– الفقه الحنفي في توبة الجديد.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | مقدمه:<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د ربا (سود) لغوي او اصطلاحي تعریف بیان کړئ.<br>د ربا (سود) د حرمت دلیل او د تحریم حکمت یې بیان کړئ.<br>د ربا (سود) حکم او صورتونه بیان کړئ.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br><br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان (پور) په تخته لیکي، د قرض لغوي او اصطلاحي تعریف، د قرض رکن، د قرض د مشروعیت دلیل او د مشروعیت حکمت یې، د قرض حکم او صورتونه یې تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څو د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br><br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>أ. لاندې پوښتنوته ځوابونه ورکړئ:<br>۱. پور لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.<br>۲. د پور د مشروعیت دلیل څه دی؟<br>۳. د پور حکم څه دی؟<br>۴. د پور رکن او شرطونه څه دي؟<br>ب. د لاندې سمو جملو مخې ته د ( √ ) او د ناسمو جملو مخې ته د (× ) نښه کېږدئ:<br>۱. د پور رکن ایجاب دی فقط(    ).<br>۲. پور په هر شي کې جواز لري (    ). | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>**۱.** قرض په لغت کې غوڅولو او پرې کولو ته وایی او شرعاً یوه چاته د مثلي مال ورکول دي چې هغه ګټه ورڅخه واخلي او مثل یې بېرته پور ورکوونکي ته ورکړي. د پور رکن ایجاب، او قبول دی. د پور مشروعیت په قرآن، سنت او اجماع باندې ثابت شوی دی. د پور په مشروعیت او روا والي کې حکمت دا دی چې اړ او محتاج خلک خپلې اقتصادي ستونزې له روا لارو څخه پوره کړي، ځکه یې خلک د پور ورکولو ته هڅولي دي. د پور د حکم له مخې په پور باندې په اخیستل شوي مال کې د پور اخیستونکي ملکیت سمدلاسه ثابتیږي او د ده په ذمه (په غاړه) سمدلاسه د هغه مثل ثابتیږي، چې باید پور ورکوونکي ته یې په راتلونکی کې ورکړي. پور دوه ډوله شرطونه لري یو ډول شرطونه یې پور ورکوونکي ته راجع دی او بل ډول شرطونه یې په پور باندې ورکړل شوي مال ته راجع دي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د پور عمده مطالب په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | زده‌کوونکي دې د لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## شلم لوست:

**عنوان:** د صرف بیعه

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. د صرف له بیعې سره آشنایي پیدا کړي.

۲. د صرف د بیعې حکم او شرطونه وپېژني.

۳. هغه صورتونه وپېژني چې د صرف له بیعې څخه نه ګڼل کېږي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د صرف تعریف: د صرف لفظ په عربي ژبه کې اړولو را اړولو ته ویل کېږي او د صرف بیعې ته له همدې کبله د صرف بیعه وایي چې په بیعه کې هم یو جنس نغدې پیسې په بل جنس نغدو پیسو باندې اړول کېږي.

۲. د صرف د بیعې حکم:

د صرف بیعه روا او جائزه بیعه ده،ځکه پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ((بِيعُوا الذَّهَبَ بالفِضَّةِ كَيْفَ شِئْتُمْ يَداً بِيَدٍ))[22] ژباړه: خرڅوئ سره زر په سپینو زرو باندې څرنګه مو چې خوښه وي لاس په لاس یې پلورئ.

۳. د صرف د بیعې د رواوالي حکمت:

د اسلام په مقدس دین کې د صرف بیعه د انسان د اړتیا د پوره کولو لپاره مشروع شوې ده، ځکه ډېر وخت یو انسان غواړي خپلې نغدې پیسې د یو ضرورت یا ګټې په غرض په نورو پیسو باندې بدلې کړي، له دې امله اسلام د صرف بیعه له معلومو شرطونو سره روا کړې ده.

۴. د صرف د بیعې شرطونه:

۱. د بیعې په مجلس کې د ثمنو قبضول، مخکې له دې چې دواړه سره جلا شي. که چېرې د عقد پر وخت نېټه شرط شوه بیا فاسده بیعه ده، ځکه کله چې قبض ثابت نشي نو بیعه هم صحت نه مومي. همدا راز که چېرې د ثمنو ځینې برخه قبض شي او ځینې یې نه وي قبض شوې، نو په کومه برخه کې چې قبض شوی په هغې کې بیعه جائزه او کومه چې نه ده قبض شوې په هغې کې بیعه باطله ده.

۲. د جمهورو علماؤ له نظره د صرف په بیعه کې خیار شرط باید نه وي او که یو له عاقدینو څخه یا دواړه خیار شرط وټاکي نو دا بیعه فاسده ده، ځکه چې خیار شرط د ملکیت او د عقد په تمام والي کې خنډ واقع کېږي او د قبض مانع ګرځي، خو که چېرې یې خیار شرط د بیعې په مجلس کې کېښود او بیا یې بېرته په همدغه مجلس کې لغوه کړ بیعه صحت مومي.

۳. د صرف بیعه به له نېټې څخه خالي وي، که چېرې عاقدینو د صرف په بیعه کې نېټه وټاکله، یا یو سړي نېټه و ټاکله نو دا بیعه فاسده ده.

۴. تماثل: که چېرې څوک یو جنس پیسې په هماغه جنس پیسو خرڅوي نو دا شرط دی چې دواړه پیسې به په قدر، یا وزن کې برابرې وي، که چېرې دواړه جنسونه یو د بل په پرتله تفاوت ولري دا سود دی، لکه افغانی د افغانیو په بدل کې یا سره زر د سرو زرو په بدل کې. که څه هم کوم جنس یې زوړ یا ناچل وي، بیا هم زیادت په کې حرام دی.

۵. د صرف په بیعه کې خیار عیب:

---

[22]- ((الفتح الكبير في ضم الزيادة إلى الجامع الصغير - (۲ / ۱۱۷)

د صرف په بیعه کې که چېرې په یو د بدلینو کې عیب څرګند شو نو د هر چا په مال کې چې عیب پیدا شوی دی کـــولای شي د خیار عیب په اساس بیعه فسخه کړي او خپلې نغدې پیسې له مقابل لوري څخه بېرته واخلي. که چېرې په ځینو پیـــسو کې عیب څرګند شو کولای شي چې د همغه عیب په مقابل کې عیبجنه مبیعه رد کړي او پاتې روغې پیسې قبولې کړي.

٦. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، ګروپي، پوښتنې او ځوابونه.

٧. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر :**

| د زده‌کوونکو فعالیت | د ښوونکي فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| زده‌کـــوونکي دې د ســـلام ځواب ورکړي.<br><br><br><br><br><br>زده‌کوونکي دې د ښـــوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. | مقدمه:<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولـــو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کـــورنی کـــار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>پور تعریف او د مشروعیت دلیل او حکمت يې بیان کړئ.<br>د قرض حکم او شرطونه کوم دي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کـــوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه يې له دوی څخه پوښتنې کوي. | ٥ دقیقې |
| زده‌کوونکي دې د ښـــوونکي خبرو ته غوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په پټه خولـــه سره لوست ولولي.<br><br><br>ضـــعیف زده‌کـــوونکي دې لوست ولولي.<br><br><br><br>زده‌کوونکي يـــې دې عملـــي کړي. | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان (د صرف بیعه) په تخته لیکي، د صرف د بیعـــې لغوي او اصطلاحي تعریف، د صرف د بیعې د نوموړو وجه، حکم او شرطونه يـــې تشریح کوي او په اړه يې زده‌کوونکو تـــه لازم معلومـــات ورکـــوي. وروســـته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو څخه غواړي چې د لوست يـــو يـــو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو بانـــدې عملـــي کوي، او د خپل ځان د ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | ٢٥ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>۳. د صرف بیعه تعریف کړئ.<br>۴. له نقودو څخه مراد څه دی؟<br>۵. د صرف د بیعې حکم څه دی؟<br>٦. د صرف د بیعې شرطونه څه دي؟ | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>صرف په لغت کې له یوې خوا نه بلې خوا ته وایي. په شریعت کې صرف د نقودو بیعه ده په نقودو باندې. په دې نامه باندې ځکه ونومول شوه چې په دغې بیعې کې ښایي هر لوری خپلې پیسې له یوه حالت څخه بل حالت ته اړوي. کله چې د صرف د بیعې شرطونه پوره شي، بیا جائزه ده. د جانبینو له جدا کېدو مخکې د مال قبضول، د خیار شرط او تاجیل نشتوالی د دې بیعې له شرطونو څخه دي.<br>د سپینو زرو په سپینو زرو باندې خرڅول په هغه صورت کې جواز لري چې د دواړو اندازه یو شان وي. سره زر په سپینو زرو باندې له زیادت سره جواز لري، خو لاس په لاس به وي. په عوضینو کې له قبض کولو مخکې تصرف کول جواز نه لري او رائجه پیسې د نغدو پیسو حکم لري. دا ټول د صرف د بیعې احکام ګڼل کېږي. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د دې لوست خلاصه په خپلو کتابچو کې ولیکئ . | زده‌کوونکي دې د لوست لنډیز په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## يو ويشتم لوست:

**عنوان:** د سلم بيعه

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده‌کوونکي باید:

۱. د سلم په مفهوم پوره پوه شي.
۲. د سلم شرطونه او ځيني احکام يې وپېژني.
۳. د سلم مشخصات او له نورو بيعو سره يې توپيرونه وپېژني او په ورځنيز ژوند کې يې عملـي کـړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د سلم بيع: د سلم بيعې ته معجله بيعه هم وايي، ځکه چې د مبيعې بدل چې قېمت او ثمن دی، په عاجله توگه تر لاسه کېږي.

۲. د سلم د بيعې د تړون د صحت لپاره د لاندې شرطونو وجود ضروري دی:

- د مسلم فيه قدر (اندازه) او وصف بايد معلوم وي، ځکه چې مسلم فيه د مسلم اليه په ذمه دين دی او د دغه دين پېژندل په قدر او وصف سره معلومېږي، نو که څوک په چا باندې، مثلاً د کور جوړولو لپاره خښتې په سلم سره وپلوري، نو د خښتو قدر او صفت دواړه بايد معلوم وي. د خښتو قدر په عدد سره معلومېږي، لکه زر دانې، دوه زره دانې او داسـې نور او صفت يې په دې معلومېږي چې دغه خښتې به پخې وي که به خامې وي او داسې نور.
- د راس المال (ثمنو) انداره بايد معلومه وي.
- د مسلم فيه جنس، نوعه، نېټه او د تسليمېدلو ځای بايد معلوم وي.

د سلم بيعه په ټولو کيلي، وزني او عددي اجناسو کې جائز دی په دې شرط چې د عددي افرادو تر منځ به په ماليـت کـې توپير موجود نه وي او په هغو عددي شيانو کې سلم جواز نه لري چې د افرادو تر منځ يې عادتاً تـوپير موجـود وي، لکـه هندوانې، ختکي پسونه او داسې نور.

۳. د سلم نېټه:

د سلم د نېټې په هکله له علماوو څخه څو قولونه رانقل شوي دي:

- په يوه قول کې د سلم کمه موده يوه مياشت ښودل شوې ده او همدا مفتی به او تر ټولو غوره قول دی.
- په بل روايت کې د سلم کمه نېټه درې ورځې ښودل شوې ده.
- په يو بل قول کې د سلم کمه نېټه د خلکو په عرف او عادت پورې تړل شوې ده.

۴. په راس المال او مسلم فيه کې د قبض څخه وړاندې تصرف کول:

په راس المال کې، چې ثمن دی يا په مسلم فيه کې، چې جنس دی، مخکې له قبض څخه هېڅ ډول تصرف کول روا نـه دي نه يې خرڅولای شي نه يې مصرفولای شي، نه يې هبه کولای شي او نه داسې نور تصرفات په کې کولای شي.

د سلم په بيعه کې د مسلم فيه له قبض څخه مخکې هم اقاله روا ده او دا فرق نه کوي چې راس المال مسلم اليه قبض کړی وي او يا يې نه وي قبض کړې.

همدارنگه د سلم په يوه معلومه برخه، لکه: د مسلم فيه نصف، ربعه، ثلث او داسې نورو کې هم اقاله روا ده.

۵. **د تدريس تگ لاره:** تشريحي، مناقشوي، پوښتنې او ځوابونه.

٦. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:** ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضری اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري. ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي: د صرف بیعه تعریف او د نومولو وجه یې بیان کړئ. د صرف د بیعې حکم او شرطونه کوم دي؟ ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي. زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:** ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان چې (د سلم بیعه) دی په تخته لیکي، د سلم د بیعې لغوي او اصطلاحي تعریف، د سلم د بیعې اړوند اصطلاحت، د مشروعیت دلیل، حکم او شرطونه او د مشروعیت حکمت یې تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي. ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي چې د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز ولولي. وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي. ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي او د خپل ځان د اطمئنان لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي. زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي. ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي. زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:<br>۱. سلم تعریف کړئ.<br>۲. د سلم د مشروعیت حکمت، او دلیل څه دی؟<br>۳. د سلم شرطونه کوم دي؟<br>۴. د سلم حکمونه بیان کړئ.<br>د صحیح ($\sqrt{}$) نښه د سمو جملو مخې ته او د خطا (X)نښه د ناسمو جملو مخې ته کیږدئ:<br>۱. مسلم فیه، چې د عقد له وخته نیولی د عقد تر آخره په بازارو کې و موندل شي، سلم په کې جواز نه لري( ).<br>۲. سلم تر هغه پورې صحت نه پیدا کوي تر څو چې د عاقدینو د جدا کېدلو نه مخکې بایع ثمن قبض نه کړي.( ). | زده‌کوونکي دې ځواب ورکړي. |
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>سلم په لغت کې تسلیمولو او سپارلو ته وایي او اصطلاحاً په عاجل مبلغ بانـدې د آجـل مال تبادلې ته وایي.<br>د سلم بیعې اړوند اصطلاحات :رب السلم مشتري ته وایي. مسلَم إلیه بایع ته وایي. مسلَم فیه مبیعې ته وایي. رأس المال هغه مبلغ ته ویل کیږي چې مخکې بایع ته ورکول کېږي. د سلم بیعه په کتاب الله، سنت مطهره او اجماع د امت باندې ثابت دی. د سلم د بیعې په روا والي کې د بایع د حاجت رفع کول په نظر کې نیول شوي دي.<br>د سلم په بیعه کې په ثمنو کې د بایع او په مبیعه کې د مشتري ملکیت ثابتېږي.<br>د سلم د صحت لپاره د اوو شرطونو وجود اړین او لازمي دی. | زده‌کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د سلم د بیعې په هکله یوه مقاله ولیکئ . | زده‌کوونکي دې د سلم په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي. |

## دوه ویشتم لوست:

**عنوان:** ر هن (ګروي)

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱. د رهن له معنا سره پوره آشنایي پیدا کړي.

۲. د رهن شرطونه، دلیل او حکمت يې پوره وپېژني.

۳. په ژوند کې د رهن په اړوند مسائلو باندې پوه شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

۱. د رهن تعریف: رهن په عربي ژبه کې ثبوت، دوام او بندولو ته وايي، خو دلته رهن د مرهون په معنا سره دی. په اصطلاح کې د مالي حق په بدل کې د متقوم مال بندولو ته رهن ویل کېږي. یعنې کوم جنس چې چا ته په رهن (ګروی) ورکول کېږي، هغه باید مالیت ولري که مالیت ونه لري، نو بیا په رهن (ګروی) باندې نه ایښودل کېږي، لکه: له چا سره د واورې، شرابو، خنزیر او داسې نورو شیانو ایښودل. بل دا چې دغه په ګروی ایښودل شوی شی باید د قبض قابلیت ولري. هر هغه شی چې نه خرڅول کېږي په ګروی باندې هم نه ورکول کېږي. همدارنګه په مرهون مال کې به دومره جهالت نه وي چې د شخړې لامل وګرځي.

۲. د رهن د عقد کیفیت:

د رهن عقد غیر لازم تړون دی، ځکه دا د نېکۍ او احسان تړون دی، خو که مرتهن په خپله یا د وکیل یا وصي په وسیله مرهون مال قبض کړ بیا دا تړون لازم ګرځي.

۳. د مرهون حکم:

مرهون مال د ضمانت حیثیت لري یعنې که چېرې دین راهن ته ببرته ورنه کړل شي، نو مرتهن کولای شي مرهون مال د دین په بدل کې ځان ته حساب کړي. که چېرې د مرهون مال قېمت له دین څخه زیات وي، په دې صورت کې به له مرهون (ګرو شوي) مال څخه د دین (خپل پور) په اندازه خپل ځان ته حساب کړي او هغه نور زیات مال به يې له خپل ځان سره د امانت په ډول وساتي.

۴. له مرهون (ګرو شوي) مال څخه ګټه اخیستل:

له مرهون مال څخه د راهن له اجازې پرته هر ډول ګټه اخیستل حرام دي، لکه: له موټر یا کور څخه د اوسیدلو، په کرایه ورکولو، اجاره ورکولو او داسې نورو ډولونو سره ګټه اخیستل.

که چېرې مرهون مال د راهن په اجازه سره د مرتهن د استعمال او ګټې اخیستلو په صورت کې هلاک شو، نو دا د امانت مال هلاک کېدل حسابیږي او که چېرې مرتهن مرهون مال د راهن له اجازې پرته استعمال کړي او هلاک شو، نو په دې صورت کې د دین په بدل کې حسابېږي، خو د حنفي مذهب ځیني علماء مطلقاً (که د راهن اجازه وي او که يې اجازه نه وي) له مرهون مال څخه ګټه اخیستل حرامه او سود بولي.

د یادولو وړ ده که چېرې مرهون مال حیوان وي او هغه مصرف ته ضرورت ولري، نو مرتهن ته روا ده چې د ساتلو او مصرف په بدل کې د حیوان له شیدو څخه استفاده وکړي.

۵. د مرهون مال ساتنه:

په مرتهن باندې د مرهون شي ساتنه او له ضایع کېدلو څخه یې مخنیوی لازم دی. که چېرې مرتهن د مرهون مال ساتنه د بل چا په غاړه واچوله او مال تلف شو نو مرتهن به یې تاوان ورکوي.

۶. د مرهون مال بل چا ته په رهن ورکول:

لکه څرنګه چې د مرهون مال څخه ګټه اخیستل ناروا دي همدارنګه یې بل چا ته د راهن له اجازې پرته په رهن ورکول هم جواز نه لري.

۷. په افغانستان کې مروجه ګروي (البیع بالوفاء):

د بیع بالوفاء صورت دا دی یو سړی ګټور جنس چا ته د پیسو په بدل کې په دې شرط ورکړي، چې که مې پیسې درکړې زما مال به بېرته راکوې، د پیسو اصلي مالک کولای شي چې له مرهون جنس څخه ګټه واخلي. دې ډول بیعې ته بیع الامانة، بیع الاطاعة او بیع بالوعد هم ویل کېږي.

۸. د بیع بالوفاء اړوند معلومات:

د بخارا او سیدونکي له داسې قحطۍ او ستونزو سره مخ شول چې ځینې وګړي یې په سود باندې پیسو اخیستلو ته اړ شول، د وخت علماوو د سود له معاملې څخه د ځان ژغورلو په غرض د دې بیعې د جواز فتوای ورکړه او وروسته بیا دې جواز د ضرورت له حالت څخه پرته هم عادت او رواج وموند. ځینو مذهبي علماوو د دې بیعې په اړوند هم د حرمت فتوی ورکړې ده، ځکه چې په دې بیعه کې هم د پور په بدل کې له مرهون څخه ګټه اخیستل کېږي او دا شرعي قاعده ده چې د پور په بدل کې ګټه اخیستل سود دی.[۲۳]

۹. په بیعه بالوفاء پورې اړوند مسائل:

۱. بایع او مشتري هر وخت کولای شي چې بیعه فسخه کړي.

۲. په دې بیعه کې دا شرط دي چې مبیعه به مشاع نه وي.

۳. بایع او مشتري یو هم نه شي کولای چې مبیعه په دریم سړي باندې په همدې بیعه وپلوري.

۴. په دې بیعه کې دا جواز شته چې د مبیعې ګټې د مشتري لپاره شرط کړل شي.

۵. که چېرې یو د عاقدینو په بیع بالوفاء کې مړ شو، نو ورثه د ده قائم مقام ګرځېدلی شي.

۱۰. **د تدریس تګ لاره:** تشریحي، مناقشوي، ګروپي، پوښتنې او ځوابونه.

۱۱. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

---

۲۳- دررالحکام.

د لوست بهیر :

| د زده‌کوونکو فعالیت | د ښوونکي فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| زده‌کوونکي دې د سلام ځواب ورکړي.<br><br>زده‌کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښه تنظیمولو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کورنی کار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د سلم بیعه تعریف او د سلم اړوند اصطلاحات بیان کړئ.<br>د سلم د بیعې د مشروعیت دلیل او حکمت څه دی؟<br>د سلم د بیعې حکم څه دی؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | ۵ دقیقې |
| زده‌کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غوږ شي.<br><br>زده‌کوونکي دې په پټه خوله سره لوست ولولي.<br><br>ضعیف زده‌کوونکي دې لوست ولولي.<br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان رهن (ګروي) په تخته لیکي، د رهن لغوي او اصطلاحي تعریف، د رهن د مشروعیت دلیل، د رهن د مشروعیت حکمت، د رهن حکم، شرطونه او دودیزه ګروي تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي. له دې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي چې د لوست یو یو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>وروسته ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کوي، او د خپل ځان د اطمئنان لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې کوي. | ۲۵ دقیقې |
| زده کوونکي دې ځواب ورکړي. | **پوښتنې:**<br>أ– لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:<br>۱. رهن لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ<br>۲. د رهن حکم څه دی.<br>۳. د مشروعیت حکمت، او دلیل یې ذکر کړئ.<br>۴. رکن یې څه دی؟<br>۵. د رهن د صحت شرطونه یې ووایاست.<br>ب. د سم ($\sqrt{}$) نښه د سمو جملو مخې ته او د ناسمو (X)نښه د ناسمو جملو مخې ته کیږدئ:<br>۱– د رهن د قبض لپاره اهلیت شرط نه دی (      ). | ۱۰ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| | ۲– د رهن قبضول به د راهن په اجازه ترسره کېږي(     ). | |
| ۵ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>رهن په لغت کې د یوه شی حبس او بندولو ته وایي او په اصطلاح کې د یوه شـــي بندول دي د یوه حق د لاس ته راوړلو لپاره، رهن په کتاب الله، سنت نبوي او اجماع سره ثابت دی. د رهن د روا والي حکمت د پور کره کول، له هیرېـــدلو، انکـــار، د پوروړی د افلاس (ناداری) څخه د پور ورکوونکی د مال ساتنه، ځان ته اطمینان پیدا کول او د پور د ژر ورکولو لپاره د پوروړی هڅول دي.<br>د رهن حکم: د پور د پرې کېدو تر وخته مرتهن د مرهون د حبس او ســـاتنې واک لري. د ګروی رکن ایجاب اوقبول دی. | زده کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېـــر غـــور ســـره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د رهن په هکله په خپلو کتابچو کې یوه مقاله ولیکئ؟ | زده کوونکي دې د رهن په اړه خپل معلومات د یـــوې مقالې په ډول ولیکي. |

**درويشتم لوست**:

**عنوان**: اجاره

**وخت**: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې**: زده‌کوونکي باید:

۱. د اجارې تعریف وپېژني.

۲. د اجارې ماهیت وپېژني.

۳. د اجارې بیعت او اعارې تر منځ له فرق وکولای شي.

۴. د اجارې شرطونه او ځیني حکمونه تر غور لاندې ونیسي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱. د اجارې تعریف: د همزې په کسرې د مزدور مزدورۍ ته وایي او په اصطلاح کې په عوض سره د منفعت خرڅولو ته ویل کېږي. لکه د انسان منفعت، د حیوان منافع، د ځمکې او کور منافع، چې په فقه کې د انسان د منافعو خرڅولو ته د اجارې لفظ مشهور دی، او د کورونو، موټرو او حیواناتو د منافعو د خرڅولو په باره کې د کرایې لفظ مشهور دی خو په حقیقت کې اجاره او کرایه دواړه د یو حقیقت نوم دی.

اجاره د نورو معاملاتو په څیر یو لازم عقد دی، نو له دې امله دا عقد له تړون څخه وروسته د فسخې له اسبابو پرته یې جانبین نشي فسخه کولای. د بیعې د فسخې اسباب لکه د عیب ښکاره کېدل او مخکې له قبض څخه د مبیعې له منځه تلل دي.

۲. د بیعې او اجارې تر منځ فرق:

اجاره هم یو ډول بیعه ده، خو اجاره یوازې د منافعو اخیستل دي او بیعه عامه ده. کله بیعه د منفعت وي او کله بیعه د عین وي. همدارنګه په اجاره کې منفعت په یو ځل مشتري ته نه منتقل کېږي او په بیعه کې له عقد سره متصله مبیعه د مشتري په ملکیت کې ټوله داخلېږي. همدارنګه په اجاره کې پر آزاد انسان باندې د اجارې عقد تړل کېږي، خو بیعه نه پرې جاري کېږي، ځکه په اجاره کې مطلوب د آزاد انسان عمل دی او دا د اجارې له لارې ممکن دي.

۳. د اجارې تړون:

د اجارې تړون په هر هغه لفظ باندې ترسره کېږي چې دواړه جانبه پرې پوه او تړون پرې تحقق ومومي لکه اجاره، مزدوري، کرایه، په عوض بارول، ګنډل، د عوض په بدل کیندل، په عوض هبه کول او داسې نور.

همدارنګه اجاره په تعاطي سره هم تر سره کېږي چې مقصود ورڅخه تر لاسه شي.

۴. په منافعو باندې د اجارې شرطونه:

که چېرې اجاره د منافعو په مقابل کې تر سره شوي وي، نو باید لاندې شرطونه تر نظر لاندې ونیول شي:

۱. کوم منفعت چې اجاره شوی دی باید په استعمال سره هلاک او له منځه ولاړ نه شي.

۲. منافع باید متقوم وي که چېرې منافع مباح وي، لکه د ونې سیورۍ نو بیا د غسې منافع نه اجاره کېږي.

۳. منافع باید تر قدرت لاندې وي او ګټه اخستل ورڅخه ممکن وي، بناءً د تښتېدلي حیوان په اجاره ورکول جواز نه لري، ځکه چې له هغه څخه ګټه اخیستل ممکن نه دي.

۴. منافع باید معلومې وي او جهالت په کې نه وي.

۵. د منفعت معلومول:

منافع کله د محل په تعینولو سره معلومېږي، لکه: د کالیو گنډل. کله په تعین او اشارې سره معلومېږي، لکه چې څوک تــر یو ځای پورې د توکو د نقلولو لپاره بل سړی په اجاره ونیسي.

۶. مشترک او خاص اجیر:

خاص هغه اجیر ته ویل کېږي چې یوازې مستاجر ته کار وکړي لکه د خادم او موظف په څېر. مشترک اجیر هغه اجیــر تــه ویل کېږي چې د کوم خاص مستاجر په کار نه وي گومارل شوی او د هر چا لپاره د مزدورۍ کولــو هــوډ لــري، لکــه: باروړنکی، دلال، خیاط، ساعت جوړوونکی او ټکسي چلوونکی. دوی د کوم خاص شخص لپاره کار نه کوي، بلکې د هــر چا د کار کولو لپاره آماده او تیار وي. که چېرې له دوی څخه کوم یو چا د اجیر په توگه ونیوه پدې شرط چې د نورو کــار به نه کوي نو بیا خاص اجیر بلل کېږي.[۲۴]

په اجاره کې اجیر باید کار په خپله وکړي او د کار لوازم په لاس ولري. د کار د نوعیت، وخت، د کار وسائل تر عــرف او عادت پورې اړه لري، مگر دا چې په تړون کې شرط شوي وي.

۷. په لاندې صورتونو کې اجاره فاسده ده:

که چېرې ماجور مشاع وي یا د یتیم مال وي، یا وقف وي یا د بیت المال مال وي یا فاحش نقصان پکې وي یا مــزدوري او اجوره مجهوله وي یا د عاقدینو رضایت په کې نه وي یا منفعت نامعلوم وي، یا د کار موده نامعلومه وي، یا د اجارې تــړون په فاسد شرط تړل شوی وي، لکه په کور کې نه اوسېدل شرط کړي، په موټر کې نه سپرېدل او یا دا په اجیر باندې شــرط کړي، چې ته به یو کال مزدوري کوې، خو که چېرې ناروغ شوی وي نو د ناروغۍ د مودې په اندازه به کار پوره کوې یــا داسې چې که چېرې دا مال دې په معینه نېټه خپل ځای ته ونه رساوه نو بیا ستا لپاره اجوره نشته.

۸. د صحیح شرط په شرط کولو سره اجاره هم صحیح کېږي:

صحیح شرط هغه شرط ته ویل کېږي چې د اجارې د تړون له غوښتنو سره په ټکر کې نه وي، لکه چې څوک څمکه پــه دې شرط سره په اجاره واخلي چې زه به یې هم کرم، او هم به یې اوبه کوم، ځکه د ځمکې اوبه کول او کرل د اجارې غوښــتنه ده. یا دا چې مشترک اجیر په دې شرط ونیول شي چې که ستا د عمل او کړنې په وجه کومه خساره یا نقصان پېښ شو، تــه به یې ضامن یې. خو په اجیر باندې داسې شرط ایښودل چې یو جانب ته په کې گټه نه وه تړون صحیح او شرط لغوه دی.

۹. د فاسدې اجارې حکم:

فاسده اجاره نافذه وي، خو اجیر ته اجر مثل ورکول کېږي، خو تر اجر مسمی زیات نه وي نه مسمی اجر.

۱۰. **د تدریس تگ لاره:** تشریحي، فردي، پوښتنې او ځوابونه.

۱۱. **مرستندویه درسي توکي:** درسي کتاب، د ښوونکي ورځنی درسي پلان، تمثیل، تخته او تباشیر.

---

۲۴- دررالحکام، شرح المجلة.

**د لوست بهیر :**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده‌کوونکو فعالیت |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **مقدمه:**<br>ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، حاضرۍ اخیستلو، د ټولګي له ښـه تنظیمولـو، د زده‌کوونکو له حال او احوال څخه د ځان خبرولو وروسته د دوی کـورنی کـار ګوري.<br>ښاغلی ښوونکی د مخکیني لوست په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي:<br>د رهن تعریف، د مشروعیت دلایل او د مشروعیت حکمت یې بیان کړئ.<br>د رهن حکم څه او شرطونه یې کوم دي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست لپاره په زده‌کوونکو کې انګېزه پیدا کوي، دوی نوي لوست ته متوجه کوي او په اړه یې له دوی څخه پوښتنې کوي. | زده‌کوونکي دې د سـلام ځواب ورکړي.<br><br>زده‌کـوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | **د لوست وړاندې کول:**<br>ښاغلی ښوونکی د لوست عنوان (اجاره) په تخته لیکي د اجارې لغوي او اصطلاحي تعریف، د مشروعیت دلیل یې، د مشروعیت حکمت یې، حکـم او شـرطونه یـې تشریح کوي او په اړه یې زده‌کوونکو ته لازم معلومات ورکوي، لدې څخه وروسته زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه پـه نښه کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو تنو ضعیفه زده‌کوونکو غواړي تر څـو د لوسـت یـو یـو پاراګراف په لوړ آواز سره ولولي.<br>ښاغلی ښوونکی لوست زده‌کوونکو ته په مناسب ډول سره تشریح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست فعالیت د کتاب مطابق په زده‌کوونکو باندې عملي کـوي او د خپل ځان د اطمئنان لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست په اړه څـو پوښـتنې کوي. | زده‌کـوونکي دې د ښوونکي خبرو ته غـوږ شي.<br>زده‌کوونکي دې په پټـه خوله سره لوست ولولي.<br><br>ضعیف زده‌کـوونکي دې لوست ولولي.<br><br>زده‌کوونکي یې دې عملي کړي. |
| ۱۰ دقیقې | **پوښتنې:**<br>لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ:<br>۱. اجاره په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.<br>۲. د اجارې د مشروعیت دلیل او حکمت څه دی؟<br>۳. د اجارې حکم څه دی؟<br>ب. د صحیح (√) نښه د سمو جملو مخې ته او د خطا (X ) نښه د ناسمو جملـو مخې ته کیږدئ:<br>۱. په اجاره کې باید د تړون دواړه اړخه رضایت ولري. ( ).<br>۲. معقود علیه چې هغه منفعت او ګټه ده باید معلومه وي. ( ). | زده‌کوونکي دې ځـواب ورکړي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقه | **د لوست لنډیز:**<br>اجاره په لغت کې مصدر دی (اجرت)، یعنی: مزد او د کار عوض ته وایي. په اصطلاح کې د مال په مقابل کې د یوه شخص او یا د یوه شي نه ګټه اخیستلو ته اجاره وایي. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په سنتو او اجماع سره روا شوې ده.<br>د اجارې ارکان ایجاب اوقبول دی، په داسې لفظ سره چې په اجاره باندې د لالت وکړي.<br>اجاره د دې لپاره روا شوې ده چې د خلکو اړتیاوې وربانديې پوره شي، ځکه هر یو شخص ټول هغه څه نه لري چې ورته اړتیا لري.<br>په اجاره کې له عقد سره سم په منافعو کې د مستاجر او په ثمنو کې د اجیر ملکیت ثابتیږي. | زده کوونکي دې غوږ شي او د خپل ښوونکي خبرې دې په ډېر غور سره واوري. |
| | **کورنی کار:**<br>د دې لوست عمده ټکي ولیکئ؟ | زده کوونکي دې د لوست عمده ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

۲۵– تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق – (ج ۱۴ / ص ۳۳۷)

۲۶ – بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع – (ج ۹ / ص ۳۱۰)